وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرٰى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ



# انوار المجالس

پښتو

## فرمودات

حضرت صاحب المرتبت شيخ القرآن والحديث پيرطريقت

رهبر شريعت الحاج خليفه صاحب دِين محمّد مدظله العالی

خليفه مجاز

حضرت شيخ المشائخ خليفه صاحب داد محمّد غزنوی مدظله العالی

جلد اول

ناشر

خانقاه عاليه مجدديه عمريه

ڈيره اسماعيل خان

وَذَكِّرْ فَإِنَّ ٱلذِّكْرَىٰ تَنفَعُ ٱلْمُؤْمِنِينَ

---

# انوار المجالس

## اول جلد

### فرمودات

شیخ القرآن و الحدیث پیر طریقت رهبر شریعت شمس المشائخ الحاج خلیفه صاحب دین محمد مد ظله العالی

خلیفهٔ مجاز

حضرت شیخ المشائخ خلیفه صاحب داد محمد غزنوي مدظله العالی

خپرونکی

خانقاه عالیه مجددیه عمریه

روح المدارس روحانیه (ډیره اسماعیل خان)

## کتاب پیژندنه:

نــوم : انوارالمجالس

فیــوضـات : شیخ القران والحدیث حضرت
خلیفه صاحب الحاج مولوي دین محمد مدظله العالی

تـولـونکی اوترتیب کونکی: مولوي سید محمد عمرفاروقي

کمپـوزران : مولوي محمداکرم نعماني،
فضل الرحمن فضلي او ولي محمدتائب

دوم چاپ : اول جلد / ۲۰۰۰ توکه

دچاپ کـال : ۱۴۲۳ / محرم الحرام – ۱۳۹۰ل قوس



خپرونـکی : خانقاه عالیه مجددیه عمریه
روح المدارس روحانیه (دیره اسماعیل خان)

# ډالۍ

زه ددې کتاب نسبت جناب شيخ الاسلام والمسلمين

مجاهد کبير حضرت صاحب نورالمشائخ ( قدس الله

سره )ته کوم ، چې تولـه اسلامي نړۍ دهغه

داحساناتو پور ورې ده.

( فاروقي )

# فهرست

# دمشائخو کرامو تقریظونه

## تقریظ

### جامع المعقول والمنقول خلیفه صاحب مولوي عبدالرحیم اخندزاده

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله و کفی و سلام علی عباده الذین اصطفی هوالذی بعث رسوله بالهدی ودین الحق لیظهره علی الدین کله.

امابعد:

محترم خلیفه صاحب شیخ الحدیث والتفسیر مولوي دین محمد چې کوم کتاب د( انوارالمجالس ) جوړکړی، ډېر بهترین اومفید کتاب دی. دعلماء حق له پاره یو چراغ ده. مخکې ما له محترم خلیفه صاحب سره ملاقات چېرته نه و کړی. خو تېر کال له ډېرهٔ اسماعیل خان نه ترکویټې پورې دیوسفر ملګري و. واقعاً چې دا محترم دانبیاوو علیهم السلام وارث اود دین له شعائرو څخه دی. دده خدمتونه که دتصانیفوپه واسطه دي اوکه د تقریرونو اویا دمجالس ذکر

په واسطه اویاهم دتدریس په واسطه مسلمانانو ته رسیدلي دي ،دده د مقبولیت لویه نښه ده.

داسې طریقه چې دحضراتو کرامو اومُقتدایانواثرات ژوندي پاتې شي دده تګلاره ده. مدرسه یې دقرآن کریم او نبوي احادیثو مرکز دی. مونږ باید په ټول توان سره دده احترام او خدمتونه وکړو. دده خدمتونه که په انټرنیټ وي اوکه په بله ذریعه، باید خلقو ته ورسول شي.

پدې مکله دمولوي صاحب سید محمد عمر فاروقي اودده ملګرو خدمتونه دستائلو وردي. الله تعالی دې د دارینو اجر ورکړي.

آمین یا رب العلمین

(خلیفه صاحب مولوي صاحب ) عبدالرحیم اخنزاده
عفی الله عنه
خانقاه عالیه مجددیه عمریه فضلیه محمدیه زرمت پکتیا
د جمادالثانی ۱۲ / ۱۴۳۲ هجري

# تقریظ

شیخ التفسیروالحدیث خلیفه صاحب مولوي سدوزی غریقي
جانشین خانقاه عالیه مجددیه عمریه فضلیه ارغندی کابل

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله الذی جعل الانسان مظهراً لکل الکمالات وجعل الانسان خلیفة فی الارض لتکمیل الکمالات الازلیة و افضل مادة التراب من مادة النار لاجل المذکورات. لذا اختار للخلافة البشر لا الجن . والصلوة والسلام علی خیر خلقه الذی هو المقصود بالوجود ذاتاً و غیره عرضاً . وعلی آله و اصحابه الذین هم خلاصة اثر الاخلاص و الحب فی الله الذین لهم اجر غیر ممنون.

امابعد:

ما بنده عاجز د شیخ القرآن والحدیث خلیفه صاحب دین محمد دامت برکاته د تصنیف انوارالمجالس (اول مجلس) مکمل او (دویم مجلس) سرسري مطالعه کړ، ډیرخوشاله اوزما د خفه زړه درد یې دوا کړ. ځکه چې په ننی پنځلسمه هجري پیړۍ کې شریعت، طریقت، حقیقت، مذهب ډیر یتیمان دي. حتی چې مصداق د (سیعود غریباً) ګرځیدلي

دي. په ننی نړۍ کې له هر طرفه په طریقت اومذهب ضربې، حملې شروع دي. نوکه نن ځوک دشریعت ، طریقت، حقیقت، مذهب ( د اهل سنتو والجماعت ) واقعي سلفي څېړي په عین بنه ساتي په کوم تغیر او تبدیل عندي او تقلیدي سره تغیر ورنه کړي نوزما په عقیده به هغه شخص مصداق ددې وي چې ( فطوبی للغرباء ).

نوزما په شخصي او کم علمه عقیده پورتنی کتاب د ننی زمانې دسوالونو ښه جواب دی. خداوند متعال ﷻ دې د خلیفه صاحب په علم او عمل کې زیادت راولي. او خداوند متعال جل جلاله دې دده دغه سیاهي په وینو د شهیدانو غالبه وګرځوي. اودده دتقریرونو راجمع کوونکی مولوي محمد عمرته دې هم پوره پوره اجرونه ورکړي.

آمین یا رب العلمین

( خلیفه صاحب مولوي ) احقرالعباد سدوزی غریقي
خانقاه عالیه مجددیه عمریه فضلیه ارغندی کابل
د جمادالثانی ۱۹ / ۱۴۳۲ هجري

# دجمع کونکي څوخبرې

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله رب العالمین ولاعدوان الا علی الظالمین والصلوة والسلام علی سیدنا محمد سیدالمرسلین وامام المتقین وعلی اله واصحابه اجمعین.

امابعد:

دالله تعالی ﷻ بې حده زیات حمد اوثنا ادا کوم چې د محترم شیخ الحدیث والتفسیر پیر طریقت الحاج خلیفه صاحب دین محمد نقشبندي دتقریرونو دراټولونو خدمت یې ماته راپه برخه کړ. خدای پاک ﷻ دې په خپل لوی دربار کې قبول کړي اوټولو مسلمانانو دې دهدایت سبب وګرځوي.

ددې تقریرونو (انوارالمجالس) په راجمع کولوکې تقریباً شپږ کاله تیرشول. جناب خلیفه صاحب دوړې دورې له تدریس سره سره دخپلو مریدانو دلاښه تربیه له پاره دهرې جُمعې له لمانځه وروسته دطریقت اوسلوک په اړه هر اړخیزه هدایات اولارښوونې شروع کړې. نو ما په هغه وخت کې له ځان سره دا فیصله وکړه چې تر خپله وسه به دده مبارک ملفوظات په کیسټو (فیتو) کې ثبتووم او کتابي شکل به ورکوم.

په دې مجلسونوکې دطریقې نقشبندیې په باره کې ، د پیر مرید اداب، د ولي تعریف او علامې، د ولایت شرایط اود طریقت مکمل اصول بیانیدل. تردې چې دا مجلسونه (۶۰) ته ورسېدل. خو د ډېرو مشکلاتو او موانعو سره سره د ملګرو د بار بار غوښتنې سره سره ،نوماهم ددوی دغوښتنوپه اساس دې کارته اراده وکړه او په پوره دوه کاله دغه مجلسونو تکمیل شو او چاپ ته مو وسپارل. او ددې تقریرونو په اصلاح څو ملګرو لکه مولوي صاحب محمد اکرم ( نعماني ) مولوي صاحب فضل الرحمٰن ( فضلي ) هم پوره همکاري وکړه. خدای پاک دې دا خدمت ورته قبول او دخپلې رضا سبب وګرځوي.

دلته یوه خبره ضرور بولم چې ترخپل وس پورې مې داصلاح پوره کوشش کړی خوبیا هم انسان عاجز دی کیدای شي املائي یا علمي غلطي پاته شوې وي نودهغو نسبت به ما ته کېږي جناب خلیفه صاحب ته ونشي اوکه چاته کومه غلطي په نظر ورشي نوهیله لرم چې ماتې خبرکړي ترڅو په اینده چاپ کې یې اصلاح وشي، ډېره مننه به مو وي.

الله پاک ﷻ دې دا مجالس دعامو مسلمانانو له پاره خصوصاً مُریدانو او مخلصینو ته دهدایت ذریعه وګرځوي .اوالله تعالی ﷻ دې له مونږ نه دغه خدمت په خپل دربار کې قبول او په آینده کې مودې خدای پاک ﷻ د دین له خدمت څخه نه محروموي.

آمین ثم آمین په همدې هیله.

مولوي صاحب سید محمد عمرفاروقي ( لوګر / خروار )

۲۴دجمادالثاني ۱۴۳۲هجري

# دپیل خبري

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذی علم اولیاء ه طرق الوصول الیه. واخرجهم من الظلمات الی النور ثم قربهم لديه. والصلوة والسلام علی سيدالانبياء والمرسلين وعلی آله واصحابه واولیاء أمته الذین هم نجوم الاهتداء اليه.

امابعد

فاعوذ باالله من الشيطن الرجيم

بسم الله الرحمن الرحيم

(أُدْعُ اِلَی سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ)

[سورة البقرة / ۱۸۵آية]

# (۱) مجلس

## د نقشبندۍ طریقه له چا څخه پیل شوې؟

دازموږطریقه نقشبندیه چې دحضرت صدیق اکبرﷺپه واسطه باندې له حضرت نبي کریمﷺڅخه رانقل شوېده او زموږ دطریقې نسبت ده مبارکﷺته کیږي.داهغه شخصیت دی چې داهل سنت والجماعت عقیده ده چې له حضرت نبي کریم ﷺڅخه وروسته په ټول امت کې بهترین اوغوره مقام لري.

حضرت نبي کریمﷺچې کله دمعراج په سفرکې له سدرة المنتهی څخه پورته شونوحضرت جبرائیلؑله ده څخه پاتې شونو حضرت نبي کریمﷺگوښې پاتې شو په هغه وخت کې په ده باندې ډېردهیبت حالت راغلی نوددې له پاره چې دحضرت نبي کریمﷺله زړه څخه هغه ډاراوهیبت ورک شي نوخدایﷻحضرت پیغمبرﷺته دحضرت ابوبکرالصدیقﷺپه غږباندې غږ وکړیعنې الله ﷻ خپل غږدده دآواز په شان ورگرځولو نوحضرت ابوبکر الصدیق ﷺ خودحضرت محمدﷺډېر نیږدې ملگری دی اوښه یې پېژني او دایې ورته وویل چې زه اللهﷻ یم اوته مې بنده یې دحضرت ابوبکرالصدیقﷺمناقب له حده زیات دي موږچې په بخاري شریفه کې دده مناقب وویل نوبیایوه ملگري ویل وایې خوب مې لیدلوچې یو ډېرلوړغروي نودهمدې غره په بیخ کې حضرت

ابوبکر الصدیق ﷺ دبریښنا په شان ولاړوي نودغره سرته وخیژي په ځنګ پورې مې حضرت محمد ﷺ ولاړوي اوداتوري راته وايي چې د صدیق اکبر ﷺ کرامات منئ؟

ګرانوورونو! دغه طریقه چې دهغه په واسطه راغلې داپه عشق اومحبت له حضرت پیغمبر ﷺ سره یې چې ذراغلې اودې خبرې ته موچې پام وي دادومره لوی مقام یې ځکه چې له ټولوڅخه دده مبارک ﷺ محبت له حضرت نبي کریم ﷺ سره زیات وُځکه ترټولوخواږه شیان یې له حضرت رسول اکرم ﷺ څخه قربان کړي ووچې هغه عبارت له ځان،مال، اواولادڅخه دي تردې پورې چې خپله حضرت نبي کریم ﷺ فرمايي چې ماته دهیچادنیادومره ګټه نده رسولې لکه دحضرت ابوبکر الصدیق ﷺ دنیاخوږ پیغمبر حضرت محمد ﷺ فرمايي چې په دنیاکې له ماسره هرچابنه کړي د هغو ښوبدله مې ورکړېده خویوازې دحضرت ابوبکرالصدیق ﷺ له ماسره دومره ښیګړې کړې چې الله ﷻ به یې بدله په ورځ دقیامت ورکوي.

خوهغه داطریقه دومره پټه ساتلې وه چې یووخت حضرت جبرائیل ﷺ راغی اوحضرت نبي کریم ﷺ ته وايي چې خدای پاک زه رالیږلی یم چې زمالطرفه په حضرت ابوبکرالصدیق ﷺ باندې سلام وایه اووروسته له سلامه یې دمریضي پوښتنه وکړه چې څرنګه یې نوحضرت نبي کریم ﷺ حضرت ابوبکرالصدیق ﷺ ته وايي چې الله تعالی حضرت جبرائیل ﷺ رالیږلی دی اوالله تعالی سلام یې درته راوړی دی اوستا دمرض پوښتنه کوي چې څرنګه

دی نوده مبارک ﷺ ورته وویل چې الحمدلله ښه یم حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایي چې څه مرض دی ؤهغه ورته وایي چې غاښ مې خوږیږي نوحضرت نبي کریم ﷺ ورته وایې چې څومره وخت کیږي هغه مبارک ورته وایي چې دوه کاله کیږي ګوری دومره عشق چې له محبوب څخه پرته بل چاته یې حال نده ویلی دوه کاله به یې دغاښ ددرد حال چاته نه ښکاره کېدلو.

تفاسیرولیکلي چې بیاکله حضرت ابوبکرالصدیق ﷺ وفات کیدلوکله چې صحابهٔ کرام ﷺ دده کوټې ته ورننوتل نودکوټې دچت لرګي یې داسې تک تورشوي وونوصحابهٔ کراموپوښتنه وکړه چې داکوټې اوراخیستی که څه وجه ده چې دادچت (بام) لرګي داسې تورشوي دي نووایي چې حضرت ابوبکر الصدیق ﷺ چې په وظیفه ذکرباندې لګیاؤکله چې سهار راپورته کېدلونو دخولې مبارکې څخه یې یواه ووتلو داسې غږ راووتلو چې دهغه غږسره ،سره دکباب غوندې بوی راوتلولکه زړه یې چې دعشق له وجې کباب شوی وي نودده داسویلي هغه ګرموالی دبام په لرګیوباندې پریوتلو نوهغه لرګي ټکه تور شویدي.

دېره پاکه طریقه ده خوداپاکه طریقه یوازې اویوازې په دېرمحبت باندې رانقل شویده تردې پورې چې مونږخپل مشایخ کرام وینودکوم خلیفه صاحب به چې له حضرات کراموسره محبت زیات ؤدهغه مقام به هم پرنوروباندې لوړؤ

حضرت انوارالمشائخ جناب فضل الدین خلیفه صاحب چې په ارغندي خلیفه صاحب باندې یې شهرت درلود اودېره لویه

هستي الله ﷻ پیداکړې وه دحضرت صاحب نورالمشائخ نورو خلیفه صاحبانو پخپله خوله داویلي وو چې ده ته دادومره لوی مقام چې خدای ﷻ وره په برخه کړی و دادده دعشق وجه وه چې دده له حضرت صاحب سره محبت اوعشق زیات وو ځکه دده په ټولو مجلسونو کې به دحضراتو دمجلسونو دهغوی دکراماتو یادونه کېدله اوپه دې خبره هم پوهېدل په کاردي چې ترڅوپوره له خپل شیخ سره محبت نه وي کامل شوی ترهغه پورې له حضرت نبي کریم ﷺ سره محبت نه پیداکیږي اوچې له حضرت نبي کریم ﷺ سره محبت نه وي پیداشوی ترهغه وخته پورې له خدای پاک ﷻ سره محبت مینه اوعشق نه پیداکیږي نوپه دې لاره کې محبت ساتل په کار دي. اومحبت په ډېرتعلق ناسته پاسته کیږي کله چې له خپل شیخ سره محبت ددین په خاطرپیداشونودامحبت دپیغمبر ﷺ دمحبت ذریعه اووسیله ګرځي او د حضرت پیغمبر ﷺ محبت بیادپرور دګار ﷻ دمحبت اوعشق ذریعه ګرځي بیاسړی دفنااوبقا مقام ته رسیږي دامقام چې پیداشونوبزرګي هم سړي ته ور په برخه کیږي بزرګي له دې څخه عبارت ده چې خدای ﷻ درڅخه خوشحاله شي.

لنډه خبره داچې داسې دعشق مقام ته الله تعالی یوسړی ورسوي نوداډېرلوی مقام دی ځکه الله تعالی خپله فرمایي ﴿ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ ﴾.

لیږرضاکول دالله تعالی دجنتونو ،نعمتونوله دنیا اومافیها
څخه غوره اوبهتره دي نوپه دې اساس باید کوشش وکړوچې نیت
مودالله ﷻدرضاله پاره وي محبت اخلاص اوحال باید خلکوته ونه
وایو خپل مقام بایدچاته ښکاره نه کړونوچې مونږاوتاسې دالله
تعالی ﷻ سره مینه اومحبت وکړواودالله تعالیﷻ په دین غیرت
وکړو نوالله تعالی ﷻ خوډېرغیرتي ذات دی ډېر رحیم ذات دی
اوالله تعالی ﷻ بیاسړی یوازې نه پرېږدي لکه په حدیث شریف کې
چې راځي ( من کان لله کان الله له )چې ته الله تعالی ﷻ ته
ورنیږدې کیږې الله تعالی ﷻ اودهغه خوږ پیغمبرحضرت محمد
ﷺبیاله تاسره خپلوي کوي اولیاء کرام سړی خپلوي بیازمونږ
تقصیراتوته نه ګوري الله تعالی ﷻ وایي چې یوبنده ماته یوه
لویشت رانیږدې کیږې زه هغه ته یوګرورنیږدې کیږم اوچې څوک
ماته یوګررانیږدې کیږي زه هغه انسان ته یوه غیږورنیږدې کیږم
اوچې څوک ماته په قراره،قراره راځي زه هغه ته په منډه ،منډه
ورځم دامعنی چې زمارحمت ډېرنیږدې دی که نه الله تعالی
خومنډه نه وي نوچې اخلاص ،عشق اومحبت پیداشي بیاپه لږ
عمل سره هم الله تعالی ډېرثوابونه ورکوي په دې شرط چې داعمل
داللهﷻ درضاله پاره وي دمثال په ډول که یوسړی دوه رکعته نفل
لمونځ وکړي خوچې دالله تعالی اودهغه عشق، محبت اواخلاص
پکې زیات وي دادوه رکعته بیاترزرو رکعاتونو نفلو څخه غوره
دي یوه جذبه دالله تعالی درضاله پاره دټولو انسانانو اوپیریانو
ترعبادت څخه غوره ده خوچې دخدای پاک درضاله پاره وي

نوداپه وظيفوباندي ليږدوام هميشوالى پكارده چې ليږمحبت پيداشي زمونږزياتره ملګري چې دلته راشي نوچې وظيفې ورسره كوونودرې ، څلوريا پنځه كاله يې دخپلومشائخو سره تعلق نه وي راغلى يعنې په كلونو ، كلونوتعلق نه وي ورسره نوتاسې پام وكړئ چې يوسړى په كلونو، كلونوورک وي اوتعلق نلري نوبيابه دده وظيفې څرنګه وشي اوسره له دې چې بيابه له طريقت څخه شكايت كوي اوداشک ورته پيداكيږي چې خداى مكړه دازما وظيفې چې نه كيږي نوالعياذبالله دانوپه طريقت كې څه نشته نوليږكوشش وكړئ چې دهميشه له پاره ذكروكړو نوځوک چې څومره چې دالله تعالىٰ ﷻ ذكراويادونه كوي دومره يې له الله تعالىٰ ﷻ سره محبت اومينه زياتيږي دپيغمبر ﷺ يادونه چې څومره زياته كيږي دومره له پيغمبر ﷺسره محبت زياتيږي له اولياء كرامو سره چې څومره تعلق پيداكيږي دومره محبت زياتيږي اووظائف بيابنه كيږي بيانوداعشق دى چې سړى خداى تعالىٰ ﷻ ته رسيږي داپرته له عشق دالله تعالىٰ ﷻ څخه نه كيږي نومقصدپه طريقت كې دشريعت پابندي ډېره ضرورده اوپه ذكرباندې دوام اومحبت د خپلواسلافو اومشائخوسره چې دطريقت غورچاڼ دغودريو ته راوزي نودغه درې لارې كه په چاكې پيداشوې هغه انسان خداى پاک ﷻ ته رسيږي.

وآخردعوانا ان الحمدلله رب العلمين

# (۲) مجلس

## داولیاء کرامو بیان

دولایت تعریف

داولیاء کرامو علامې

دولایت شرطونه

الحمد لله رب العلمين والعاقبة للمتقين والصلاة والسلام على خير
خلقه نبينا وشفيعنا ومولانا محمد وعلى اله واصحابه اجمعين (أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ ٱللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ)

خبردار شئ ! واورئ ! دا خبره چې بېشکه د الله دوستان نشته په دوی باندې څه خوف اونه به وي دوی غمجن په ورځ د قیامت کې.

دوستان د الله څوک دي ؟ خدای پاک یې صفات بیانوي اووایي : (الذين آمنوا) هغه کسان چې ایمان یې راوړی وي (وکانوا یتقون) او چې ځان یې ساتلی وي له ګناهونو څخه. او له خدای پاکﷻ نه وېرېدل. نو بیاددغو اولیاء کرامو له پاره څه انعام ده ؟ (لهم البشرى) ددوی له پاره زېری ده (فی الحیوة الدنیا

) د دنیا په ژوند کې ( وفی الاخرة ) اوپه ورځ د آخرت کې ( لاتبديل لكلمات الله ) نشته بدلېدل د کلماتو د الله تعالی لره . ( ذلك هو الفوز العظيم ) دا زېری چې د دواړو جهانونو کامیابي ده دا ډېره لویه کامیابي ده.

۱ــ ولي چاته ویل کېږي ؟

۲ــ اولیاء الله په څو قسمه دي ؟

۳ــ د ولي څه علامې دي ؟

۴ــ د ولایت سبب څه ده ؟

۵ ــ د اولیاء کرامو عاقبت څه ده چې خدای پاکﷻ بیا اولیاوو ته څه ورکوي ؟

## ولي چاته وايي ؟

۱ ــ ولي : ولي ماخوذ له ( وَلِیَ ) نه ده، ولي چې مصدر ده هغه په معنا د قرب سره راځي، ولیه قرب ته ویل کېږي. ولي د اسم فاعل صیغه ده. چې ماخوذ له ( وَلِیَ ) نه ده دا په معنا د قریب ، په معنا د محب ، په معنا د صدیق، په معنا د ناصر. په دغو ټولو معناوو باندې راځي.

اوس دغه ولی چې په معنا د قرب سره شو، دا قرب چې د الله او د مخلوق په منځ کې نسبت واخلو یعنې ( ولی د الله ) نو دلته دوه قسمه قربونه دي:

اول قسم :

اول قسم قرب او نزدیکت د الله مخلوق ته هغه بلاکیف قرب ده ، هغه بلاکیف چې مونږ ته علم نشته ، ایجاد او پیدایښت ددغو مخلوقاتو ده الله په هغه قرب باندې چې الله تعالی فرمایي: (نحن اقرب الیه من حبل الورید ) مونږ نژدې یو دغه انسان ته د غاړې تر رګونو هم. د هغه قرب په بنیاد یې انسان پیدا کړی ، ددغه آیت تشریح بنا بر ظاهر داده مونږ بنده ته ورنږدې یو د غاړې تر رګونو. اوس دا قرب کوم قسم کیفیت ده ؟ بې له تصوف نه تقریباً حل به نه شي. د تصوف په اصطلاح کې به لنډ تفسیر دلته وکړو: څوک چې موجِد د یو چا وي ، جوړونکی د یو شي وي، مثلاً هغه د کارخانې والا مستري په هغه شي علم لري که نه یې لري ؟ دی به د هغه شي په نواقصو ښه خبر وي ، که په خپله به هغه شي په خپلو نواقصو ښه خبر وي. مثلاً : موټر ده مستري یې جوړوي ، دغه مستري ته ددغه موټر ټولې پُرزې معلومې دي، ددغه موټر کمالات او نقصانونه موټر ته ښه معلوم دي او که انجینیر ته ؟ نودا انجینیر موټر ته ورنږدې ده د موټر له ځان څخه. ځکه چې څومره قرب راځي علم راځي ، دا قرب خو ذریعه د علم له پاره ده. دا انجینیر له موټر نه په موټر باندې ډېر نږدې ده. لهذا دا یو مثال کافي ده. ﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ ٱلْوَرِيدِ﴾ . الله مخلوق ته ورنږدې ده ددوی د غاړې تر رګونو هم. خالق د مخلوقاتو ده که نه ده ؟ چې موجِد او پیدا کوونکی د مخلوقاتو په خپله الله پاک ﷻ

ده ، نوددغو مخلوقاتو کمالات اوددغو مخلوقاتو نقصانات دا به الله تعالی ﷻ ته ښه معلوم وي که په خپله به دغه بنده ته ښه معلوم وي؟ نو ( اقرب از من به منی ) ته نږدې يې ماته له ما نه . زه خپل ځان ته دومره نه يم رانږدې لکه ته چې رانږدې يې. اوس نو داغه قُرب علمي ده چې ثمره دهغه ايجاد ددغه مخلوق ده..

نو يو قرب بلا کيف د خداوند متعال ﷻ مخلوق ته ده چې اثر يې پيدا کول ددغو مخلوقاتو دي.

**دوهم قسم:**

دوهم قسم قرب د الله مخلوق ته قرب د محبت ده، هغه اول قسم قرب د ايجاد و ، دا دوهم قسم قرب د

محبت ده، دغه قرب محبت په نسبت سره د مخلوق اود الله پاک ﷻ په منځ کې چې راځي دا بيا يو قرب بلاکيف ده، مکاني نه ده چې په ځای کې سره نږدې وي خو په علم مکاشفه سره هغه هم متصور کېږي ، په قرب جسماني باندې لکه دوه اجسام چې سره نږدې وي . داسې تمثيل يې راتلای شي په عالم مثال کې په کشف د مشاهدې سره ، ددغه اثر اوعلامه هغه دا توفيق د عبادت ده چې الله پاک ﷻ ورنږدې ده مخلوق ته نو ده ته توفيق د عبادت ورکوي، مخلوق چې ورنږدې ده الله ته نو دالله د اطاعت، بندګي محبت پيدا کېږي. د هغه اثر بيا محبت د الله ده چې د الله دده سره محبت پيدا کېږي، خو دغه قرب د محبت بيا متفاوتې درجې لري.

ادنی محبت د خدای پاکﷻ له بنده سره چې پیدا کېږي د هغې کمه رُتبه ایمان ده. خدای پاکﷻ فرمایي: (اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِينَ ءَامَنُوا) الله مُحِب دوست دهغو خلکو دی چې ایمان یې راوړی وي.له کافر سره الله پاکﷻ محبت نه کوي. نو منشاء د قرب د ادنا رتبې دپاره داده چې : سړی به مسلمان وي . اعلی درجه د محبت هغه د انبیاوو علیهم السلام مقام ده. په انبیاوو کې بیا د سید الرسل حضرت محمدرسول اللهﷺ ده، چې دهغه ترقیات غیر متناهي دي. په مقام ددغه حب کې چې د هغه نه صاحب د مصداق چې څوک نه وي تعبیر نه شي کولای خو صرف د حدیث په تقاضا باندې حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې: خدای پاکﷻ فرمایي چې: ماته زما بنده په فرائضو رانژدې کېږي ،بیا چې نفلي عبادات کوي رانژدې کېږي رانژدې کېږي تردې پورې چې دی زما محبوب شي ، زما محبت ورته پیدا شي، او کله چې زما محبت ورسره پیدا شو نو زه دده سترګې شم، چې په ما باندې لیدل کوي، زه دده لاسونه شم چې په ما باندې نیول کوي، زه دده پښې شم چې په ماباندې رفتن کوي. اوس دغه قرب بلاکیف د محبت ده چې دخداوند متعالﷻ اود بنده په منځ کې دومره د نزدیکت حالت پیدا کېږي چې آن په یو وجود سره تعبیر کېږي. او لکه مخکې چې مې درته وویل چې: په یو وجود سره ورنه تعبیرکېږي چې: الله پاکﷻ به د قیامت په ورځ یوسړي ته ووایي چې: زه مریض وم، ته زما پوښتنې ته رنغلې. زه وږی وم، تا ماته ډوډۍ رانه کړه. زه

تږی وم، تا ماته اوبه رانکړې. هغه سړی به ورته ووایي چې: خدایه پاکه ! ته خو نه مریض کېږې. او نه وږی کېږې او نه تږی کېږې ! خدای پاک به ورته ووایي چې: فلانکی دوست زما مریض و ته یې پوښتنې ته ورنغلې، فلانکی دوست زما وږی و تا ډوډۍ ورنه کړه. فلانکی دوست زما تږی و او تا اوبه ورنه کړې. الله پاک وایي چې زه یې سترګې شم، لاسونه او پښې یې شم. زه یې ژبه شم. نودا په محبت کې د قرب متفاوتې درجې دي. د ایجاد په لحاظ یې رتبې متفاوتې نه دي. هر مخلوق چې الله پاک ﷻ پیدا کوي ، نو الله پاک ﷻ علم پرې لري، قرب د ایجاد د ټول مخلوق علی السویه دی، خو قرب د محبت هغه بیا متفاوتې درجې لري.

ادنا درجه د محبت په ایمان پیدا کیږي ، تردغه نه چې لږ ورپورته شي په تقوی باندې بیا پیدا کېږي ، لکه وروسته به تشریح بیا دوه وارې وکړو ، په تقوی کې چې څومره زیادت راځي دغومره په درجو د قرب د محبت کې جګوالی راځي، چې انسان بیا الله پاک ﷻ ته دومره ورنږدې شي چې بیا سمع ، بصر او ید او رجل نه تعبیر کیږي، چې زه دده سترګې شم، زه یې لاسونه او پښې شم او زه دده ټول اندامونه شم.

دا د لغت په اصطلاح د ( ولی ) د لفظ درته ما دوه ترجمې وکړې. چې هغه په معنا د قرب راځي، همداسې ( ولی ) په ډېرو معانیو سره راځي. دغه ( ولی ) چې په معنا د قرب ده، قرب په دوه قسمه شو ، یو قرب د ایجاد ده او بل قرب د محبت ده.

## د صوفیاء کرامو په اصطلاح کې (ولي)

د صوفیانو کرامو په اصطلاح کې (ولی) هغه چاته ویل کېږي چې: دده زړه همیشه د الله پاکﷻ په ذِکر باندې مشغول او مصروف وي. (یسبحون اللیل والنهار لایفترون) شپه ورځ د خدای پاکﷻ په ذکر لګیا وي، بیا سُستي پکې نه پیدا کېږي.

دوهم: (ولي) د صوفیاء کرامو په اصطلاح کې هغه چاته ویل کېږي چې زړه یې د الله پاکﷻ له محبت نه ممتلی (ډک) وي. زړه به یې د الله تعالی په ذکر په هر آن کې مشغول وي.

دریم: زړه به یې د الله پاکﷻ له محبت نه ډک وي، حتی که د بل چا سره محبت هم کوي هغه به د الله پاکﷻ د رضا له پاره وي. لکه حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: (ان احب الاعمال الی الله الحُب فی الله و البغض فی الله) بهترین داعمالو هغه دا چې د چا سره محبت کوې هم دخدای له پاره او که بغض کوې هم د خدای له پاره نوچې هغه بهترین د اعمالو ده، هغه مقام به بیا ورته نصیب کېږي. لکه حضرت نبي کریمﷺ وایي: (ومن اعطی لله ومنع لله و احب لله و ابغض لله فقد استکمل الایمان). چاچې راکړه ورکړه یواځې د خدای د رضا له پاره کوله معنا دا چې نېک او ښه سړی ده څکه ورسره راکړه ورکړه کوي، چا چې منع هم خاص د خدای پاکﷻ د رضا له پاره وکړه، معنا داچې بد سړی ده په ګناهونو لګیا ده، که محبت له چاسره کوي او که بد یې ایسه وي هم. یعنې

هرڅه یې د الله پاک له پاره وي. نو زړه یې ډک وي په محبت د الله.
حتی که دځان سره محبت کوي هم د الله پاکﷻ له پاره یې کوي
چې زه د الله پاکﷻ یو مخلوق یم او که د بل سره محبت کوي هم د
الله پاک د رضا له پاره یې کوي.

## فناء القلب

چې له دې نه په دوهمه اصطلاح د صوفیه کرامو تعبیر
کېږي په فنا د قلب سره. چې ددغه انسان زړه د الله پاکﷻ په
عشق او محبت کې دومره فاني شي چې د بل چا یاد بالکل ورته نه
پیدا کېږي. په زړه کې یې یواځې د الله پاک محبت وي بل څه ورته
نه پیدا کېږي. ددې ثمره بیا داده چې زړه مستغرق د الله پاکﷻ
په ذکر شو، ثمره یې داده چې ددې انسان ظاهر او باطن بیا دواړه
په شریعت برابر شي، د ظاهر او باطن اصلاح یې وشي. اخلاق یې
په شریعت برابر شي. حسد، ریا، کبر عُجب او نورځومره مُهلک
امراض چې وي هغه بیا ورڅخه لرې شي او هغه نېک صفات یې
په زړه کې ځای ونیسي. چې ددې نه په اصطلاح د صوفیانو کرامو
کې تعبیر په فنا د نفس سره کېږي.

یو فنا د قلب ده او بله فناء د نفس ده. دګناهونو له پاره،
اماره بالسوء څوک ده؟ خو نفس ده، چې زړه اصلاح شو، زړه د
الله پاکﷻ په ذکر لګیا شو، د الله پاکﷻ له محبت نه ډک شو نو
نفس به یې تابع کېږي، بیا له نفس څخه هغه رذیله اخلاق ټول

ختمېږي ، نفس بیا په نیکو اخلاقو متصف کېږي. نو بیا له دې څخه تعبیر په فنا د نفس سره کېږي.

## د بقاء بالله یا فی الله مقام

چاته چې فناء القلب او فناء النفس پیدا شو، نو بیا له دې نه وروسته مقام د بقاء راځي. مونږ او تاسې چې خط زده کړو او تاسې مطول کې بیا د علم په تعبیر کې ویلي دي چې ملکه انسان ته حاصله شي . ملکهٔ یو کیفیت راسخه ته ویل کېږي، داسې نه چې اول دې یو دوه ټکي زده کړل ، بیا دې پرېښودل تردې پورې چې هغه دې هېر شول، دې ته بقا نه ویل کیږي، بلکې دې ته ویل کېږي چې انسان بیا په هغو صفاتو باندې رنګ شي، د الله پاکﷻ په عشق او محبت کې رنګېدل ککړېدلو ته ویل کېږي، په حسنه صفاتو باندې رنګېدل ، معنا دا چې متصف وګرځي، هغه دده ملکه وګرځي. لکه د الله پاکﷻ په حسنه صفاتو رنګېدلو ته وایي لکه الله پاکﷻ فرمایي: ( **صِبْغَةَ اللهِ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللهِ صِبْغَةً** ) دا د الله پاک د دین رنګ ده. مثلاً دغه جومات ته مونږ یو رنګ ورکړو هغه به زیاتي په دغه دېوال پورې پاتې وي. نو دغه ته بقا ویل کېږي.

یو فناء ده او بل بقاء ده. چې د الله پاکﷻ په عشق او یاد کې زره فاني شو، نفس فاني شو ، له غیر الله نه تعلق ختم شو ، اوس که بېرته خدای نخواسته دا کمالات یې پرېښودل، ریاضتونه ، کوششونه او بندګي یې پرېښودله نو بیا دا موقعه

بېرته له لاسه څخه وځي ، او چې کوشش کوي او له خدای پاک ﷻ څخه ویریږي او خپل خالق لایزال ته متوجه وي بیا دغه صفات دده ملکه وګرځي. د ملائکو تسبیحات او تحمید دهغوی ملکه ګرځېدلې ، له ذکر نه بغیر یې ژوند تنګیږي. زمونږ دغه ساه اېستل او اخیستل دا د نفس یوه ملکه ګرځېدلې ده، که ساه مو بنده شي نو مړه کېږو په عذابیږو. نو دغه چې مقام د فنا او بقا پیدا شو نو بیا به عبادت نه بوج کېږي.

نو اولیاء کرام او صوفیاء کرام د (ولي) تعبیر په دې سره کوي چې زړه یې د ذکر او محبت الهي نه مستغرق وي، هغه د دغه آیت معنا ده چې (وکانوا یتقون) په الله پاک ﷻ تصدیق لري خو له دې سره سره ډاریږي هم. له مخالفت څخه یې همیش ځان ساتي. نو همیش یې الله په یاد وي. په زړه کې یې د الله پاک ﷻ محبت وي. د ګناه محبت نه پیدا کېږي.

دا د قرآن کریم هغه ترجمه ده کومه ترجمه یې چې اهل تصوف کړې ده. کنه نفس مؤمن ته هم د قرآن کریم په اصطلاح کې (ولي) ویل کېږي. خودا د اولیاوو د تصوف په اصطلاح کوشش ده چې سړی یو مقام ته ځان ورسوي. هغه دغه مقام ده.

## د (ولي) علامې

چې مونږ یې په رښتیا سره وپېژنو چې دا ولي ده، په ظاهره یې څه علامې دي ؟

امام بغوی رحمه الله حدیث رانقل کړی
د ﴿ ولي ﴾ علامې: **ان اولیائی من عبادی الذین**
دی چې خدای پاک ﷻ فرمايي ﴿ ان اولیائی من عبادی الذین
**یذکرون بذکری و اذکرهم بذکرهم** ﴾ زما دوستان زما له
بندګانو څخه هغه خلک دي چې زما په یاد دوی یادیږي خلکو ته
او ددوی په یاد زه یادیږم خلکو ته.

دوهم تعبیر یې داسې شوی دی چې: امام بغوی فرمايي چې:
د ﴿ ولي ﴾ علامه داده چې: ﴿ **اذا رُؤا ذُکرالله** ﴾ کله چې دوی ولیدل
شي نو الله پاک ﷻ خلکو ته وریه یاد شي.

دریم تعبیر یې داسې ده چې: د ﴿ ولي ﴾ **علامه داده چې** ددوی
په مجلس سره د انسان په زړه کې د الله پاک سره مینه او محبت
پیدا شي چې ددوی مجلس کوې، ددوی واقعات بیانوې نو اثر
یې بیا داوي چې نفسِ مجلس شروع کړې نو له الله پاک ﷻ سره یې
مینه په جوش راشي. تعلق یې پیدا شي.

اوس دلته بنیادي خبره داده چې: ددغه ﴿ ولي ﴾ **علامه** چې په
حدیث شریف کې ذکر شو ه چې په دده په لیدلو سره انسان ته
خدای پاک ﷻ وریه یاد شي، دده په یاد سره سړي ته الله پاک ﷻ
یادیږي. ددې څه وجه ده ؟ چې دا ولي ده، بنده ده ، هغه خالق ده ،
الله ده ، دده په لیدلو سره سړي ته هغه یادیږي، دده په مجلس سره
انسان ته خدای پاک یادیږي دا څنګه ؟ نو وجه یې داده چې
مخکې ما درته وویل چې: ﴿ وَلِيَ ﴾ قُرب ته ویل کیږي، قرب د
محبت هغه بلاکیف درجه ده. چې د خدای پاک ﷻ سره د ځینو
اشخاصو دومره نزدیکت راشي چې معیت ذاتي راشي، خدای

پاکﷺ فرمايي چې: بيا ددغه انسان سترګې، غوږونه، لاسونه او پښې بلکې هر اندام يې زه شم. اوددغه بنده اوخدای پاک په مابين کې داسې قرب بلاکيف راغی چې معيت ذاتي ده نو د يووالی له وجې نه چې اوس مثلاً دواړه لاسونه يوځای دي، اوس چې يو وينې نو بل هم ورسره ليدل کېږي، چې ښی لاس يادوي چپ هم ورسره يادېږي، چې چپ لاس يادوي نو ښی هم ورسره په خپله يادېږي.

ددې مثال داسې ده لکه : لمر په څلورم آسمان کې ده ، خو چې دا شيشه ورته مخامخ شوه، هغه رڼا د لمر په دغه ديوال لګېږي ، لمر سره له دې چې د باندې ده ، په شيشه کې نشته. يوې کړکۍ ته چې سړی شيشه مخامخ کړي ددغې شيشې رڼا او تجلي هلته په دېواله باندې لګېږي، لکه څرنګه چې د لمر رڼا د باندې په دېواله لګېږي ځکه چې ددغې شيشې او لمر په منځ کې يو علاقه د قرب راغله. ، هغه انوار او شعاع چې دلمر وه هغې په دغې شيشې کې ځای ونيوه. نو په دې کې هم دا کمال پيدا شو. چې دا شيشه اوس بل شان رڼا کوي. بلکې د شيشې نه چې کومه رڼا په دېواله لګېږي ددې رڼا اثر او تېزوالی تر هغې رڼا زيات وي کوم چې له لمر څخه به ذات خود صادرېږي.

همدارنګه پنبه ( مالوچ ) درواخلئ ، ځينې داسې شيشې شته چې دهغې وړانګه يا شعاع په مالوچو ولګېږي نو اور واخلي ، د لمر په خپله وړانګه او رڼا باندې اور نه اخلي اوددې شيشې

په دننه کې چې د لمر کومه وړانګه راغله د هغې په واسطه اور اخلي.
ددغې مثل تجلي چې اعتصام په مثل ثاني کې ده په مقام ثاني کې چې مخکې مونږ ذکر کړ چې: ﴿فلما تجلی ربه للجبل﴾ کې مې معنی درته کړې وه، چې دهغه تقرر دلته په دوهم مکان کې راغی. ددغه په دغه ځای باندې اثر زيات شو. ولې زيات شو؟ ځکه چې دلته علاقه د قرب ده، دا شيشه اودا پنبه د مکان په لحاظ هم سره نزدې دي، چې د لمر او پنبې په مابين کې په مکان کې بُعد (لرې والی) موجودده نو د لمر له رڼا نه اور نه اخلي اوددغې نزدې شيشې له رڼا نه پنبه اور اخلي. مسلمان ده يواځې يې کلمه ويلې ده، له الله سره يې تعلق جوړ شو، ځکه الله پاک فرمايي: ﴿ٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ خو جذب نه ورته پيدا کېږي، عشق او محبت ورسره نه وي، د خدای پاکﷻ د ذکر په وخت کې ورسره ژړا نه وي، حضور برابرېدل ورسره نه وي، لکن چې د بنده سره يې تعلق جوړ شو بيا دغه شيان پکې پيدا کېږي. ولې؟ ددوی مناسبت او قرب سره ده، ددغه قرب په لحاظ دغه اثر پيدا کېږي. کله چې لمر ته دلته شيشه مخامخ ونيسو نو ددغې شيشې پړک چې څوک ويني نو لمر ورته په يادېږي او کنه؟ نو هغه انوار چې ددغه ولي په سينه کې وي ددغو انوارو په مشاهده او ليدلو سره الله ورته په يادېږي. اصلي مبدء الفيض خو خداوند متعالﷻ ده. هغه انسان ته ور په ياد شي.

یا دوهمه وجه داده چې: خدای پاک په دغو اولیاوو کې
ماده د استعداد د تاثر من الله د تاثیر فی غیر الله یې پیداکړې ،
دغو اولیاوو کې قوت او استعداد ددې ده چې هغه فیوضات چې
د الله تعالیﷻ له طرف نه نازلیږي په مخلوق باندې دهغو قبولي
کولی شي، تاثر من الله معنا دخدای پاکﷻ له لوري چې کوم
تاثیرات راځي دهغه تاثر کولی شي. قبولي او برداشت یې کولی
شي اوبیاچې هغه تحمل په دوی کې راغی ځای یې ونیو بیا په
دوی کې خدای پاکﷻ ماده د تاثیر اېښې ده چې بیابه نور
مخلوق ترې متاثر کېږي، اوس نو چې دهغه انوار او فیوضات په
ده کې راغلل، ده تاثر قبول کړ، له دې نه چې تاثیرراځي نو فی
الحال الله پاکﷻ انسان ته وریه یاد شي. لکه مخکې مې چې په
مثال کې درته وویل چې: د شیشې پړک سړی په دېوال ووینې نو
سړي ته لمر ور په یاد شي چې لمر راختلی ده، په دغه شیشه کې
قابلیت د تاثر د لمر د شعاعو ده، د لمر د شعاعو د اجتماع
قابلیت یې په ځان کې راوستی ، اوس په دغه کې اثر هم خدای
پاکﷻ اېښی ده، قو ت د تاثیر. چې ددغه هغه شعاع چې دلته
یکی جمع شوي دي ببرته له دغه نه په بل کې هم اثر کوي، اوس نو
چې په بل کې اثر راغی اثر چې څوک ووینې مؤثر وریه یادیږي. دا
اثر ددغې شیشې چې هلته پیدا شو په دغه کې اصلي اثر د څه
شي نه پیدا وو مؤثر لمر و.

نو له دغه ولي سره چې دغه مقام ده چې سړی دی ووبنی نو
الله پاکﷻ سړي ته ور په یادیږي وجه یې داده چې د اللهﷻ سره

دده علاقه پیدا شوې ده، نو له الله ﷻ څخه یې تاثرات د فیوضاتو کړي دي، ددغو فیوضاتو اثر چې په بل ځای کې راغلی نو سړي ته هغه ورپه یادیږي. چې اصلِ مؤثر هغه ده. دا د ولایت له پاره مؤثر څه تشریح وکړه چې: د ولي علامه داده چې تعریف مو مخته ذکر کړی وو. دا مو علامه ورته ذکر کړه چې: ددوی په لیدلو سره به الله پاکﷻ انسان ته ورپه یادیږي. د الله پاکﷻ په یاد به دوی سړي ته ورپه یادیږي. اودغه طریقه د یاد ده چې ددوی ظاهر شکل دې ولید، د سنتو او شریعت پابندي دې ولیده نو دهغه له وجې نه له شریعت سره ستا محبت پیدا شو. هغه سنت طریقو په تا کې تاثیر وکړ. نو څکه الله پاکﷻ درته په یاد شو.

اودا چې څوک د اذکارِ باطنه وو څښتن وي چې د کوم ولي په مجلس کې کیني نو لطائف یې خود بخود چالان شي. (اذا رُؤا ذُکِرالله) چې دوی ولیدل شو نو الله یې هم په یاد شو. هغه دده په زړه اوپه لطائفو کې چې کوم تاثر من الله راغلی هغه تاثیر فی الحال په بل کې هم راغی، دهغه لطائف هم ورسره چالان شول، چې کله دی ولیدل شي نو الله ﷻ ورپه زړه کیږي.

## د (ولي) تعریف او ولي په غیب علم نه لري

د (ولي) هغه تعریف نه ده کوم چې په عوامو کې مشهور ده. تفسیر لیکي چې: د عوامو په نزد (ولي) دې ته ویل کیږي چې هغه به کرامات لري، خارق العادة کارونه به ورڅخه صادریږي، داسې

شیان به دده په لاس کېږي چې عام انسانان له هغه څخه عاجزه وي، اویابه دی په مغیباتو (پټو خبرو) باندې خبر وي. نودا د ولي علامه نه ده، لکه زمونږ اکثره خلک اوس هم په دې عقیده دي چې ولي ته به ډېرې پټې خبرې معلومې وي او هرڅه چې دی غواړي کولی به يې شي . نه ! دا دعوامو اصطلاح ده. دا د ولي علامه نه ده. ځکه ډېر داسې اولیاء الله دي چې نه کرامات لري اونه په مغیباتو باندې علم لري. لکه حضرت نبي کریمﷺ فرمايي: (لوکنت اعلم الغیب لاستکثرتم من الخیر) که زه په غیب پوهېدی ما به د خپل ځان له پاره ډېر خیر جمع کړی وای، بلکې د اولیاوو په اصطلاح کرامت ته (حیض الرجال) ویل کېږي یعنې دا د نرانو حیض ده او ښځې ته چې حیض ورشي په خپله جامه باندې شرمیږي ، هغه د وینو ځایونه چاته نه ورښکاره کوي، پټوي يې.

کامل ولي ته چې کوم کرامت خدای پاکﷻ ورکړی هم وي نو دی يې خلکو ته نه ښکاره کوي، له خلکو څخه يې حتی الامکان پټوي. که کله ترې صادر شي په وخت د غلبې د حال کې ؛ چې دی د جذب په حالت کې وي په خپل کنټرول او اختیار کې نه وي ، هلته د خدای پاکﷻ عشق په ده دومره غالب شي چې له اختیاره ووځي، نو يو کرامت ورڅخه صادر شي، نور پټ شیان نه شي لیدلای. یا خوارق صادرېدل دا شرط یا علامه د ولایت نه ده، دا له اولیاوو الله نه پرته نورو ته هم پیدا کېږي، بلکې غیر مسلمانو ته هم پیدا کېدای شي.

مونږ اوتاسې په میبذی او صدرا کې ویلي دي چې: یوه ډله د یونان د علماوو وه چې هغو په کشف کار کاوه، او سره له دې چې د کوم سماوي دین تابع هم نه و، خو بیاهم کشفیات ورته پیدا کېدل. دا خوارق خو جوګیان هم کولای شي، چې جوګ پوخ کړي او بیا په هوا الوزي. نو که یوڅوک په شریعت برابر نه وي او له هغه څخه خوارق صادرېږي دا ولایت او کرامت نه بلکې استدراج ده. نور داچې کرامت په قرآن کریم ثابت ده. مخکې مو هم د حضرت بي بي مریم په واقعاتو کې ویلي دي چې بې وخته میوې به ورته راتلې. او نور هم وروسته د کراماتو خبره را روانه ده. کرامت د اولیاوو حق ده.

زمونږ د عقیدې موافق که له نفسِ کرامت نه څوک منکر شي نو په اتفاق سره ورته ضال او مضل ویل کېږي، خو په کفر کې یې شک ده.

اوپه دغه ولي کې چې دغه کمالات پیدا شول د حضرت ابن عمررضی الله عنهما نه دغه حدیث مبارکه منقول ده، هغه وایي چې: چاته دغه مقام پیدا شو چې مقام دولایت ده نو هغه به له هیچا نه هم ځان پورته او ښه نه بولي، دا علامه یې ابن عمر رضی الله عنهما ذکر کړې ده.

حضرت مجدد الف ثاني شیخ احمد سرهندی فاروقي قدس الله سره وایي چې: څوک خپل ځان د کافر فرنګي نه بهتر وبولي نو هم د الله پاک ﷻ معرفت پرې حرام ده.

حضرت سعدي رحمه الله وایي: *نهد شاخ پُرمیوه سر برزمین.*

دا قانون ده سفیدار او چینار پورته منډې وهي ځکه چې بې میوې ده، هره بې میوې ونه چې وي مخ پورته به روانه وي، خو منه چې له میوې نه ډکه شي چې څومره ډکیږي نو درنیږي ښاخونه یې لاندې د ځمکې خواته راکاږه شي. د خُرما ونه جگه ده خو میوه یې چې په سر کې ده میوه یې کوزه راځوړنده وي.

نو څوک چې د خدای پاک ﷻ حقیقي ولي وي نو هغه به یې له خلکو نه غټه نه وایي. ځان به له نورو عامو مسلمانانو بهتر او ښه نه بولي.

## د ولایت اول سبب او ولایت په څه سره پیدا کیږي؟

د (ولي) د ولایت سبب څه شی ده؟ ولایت په څه پیدا کیږي؟ اصل کې سبب د حصول د ولایت له پاره انعکاس د انوارو د حضرت رسول اللهﷺ ده، د انسان په سینه کې چې د حضرت نبي کریمﷺ مشکوة النبوة د سینې مبارکې فیوضات، انوار او اخلاق دي داچې چېرې منعکس شوي، دغه رڼا چې چېرې ولگېده نو هلته بیا ولایت پیدا کیږي. خو په ظاهر کې ددغه انعکاس له پاره سبب څه شی ده؟ دا د نبيﷺ د سینې انعکاس چې د ولي په سینه کې راځي ددې له پاره څه سبب ده؟ نو ددې له پاره دوه عمده سببونه دي: (كثرة المجالسة مع النبیﷺ فی حیاته) له حضرت نبي کریمﷺ سره ډېره ناسته په ژوند کې. یا دده له نائبانو

اووارثانو سره خو چې ناسته په محبت او په انقیاد وي، چې کوم حکم هغه کوي او دی یې په ښه طریقه سره ومني. اشتباه، تردد او انکار ورسره نه وي. نو یو په دې سبب باندې مقام د ولایت پیدا کېږي. دا ولې پیدا کېږي ؟ ددې وجه به هم درته په لنډه توګه روایم یو اخې دغه ناسته او انقیاد یې ولې ددې سبب کېږي ؟او نور نه کېږي ؟

ځکه چې څوک ددغو خلکو سره کیني دهغه زړه د دین په رنګ رنګ شوی دی، یعنې ظاهر او باطن یې د خدای پاک ﷻ په دین برابر دي. نو ته چې له ده سره کېنې، ستا د زړه تعلق چې دده له زړه سره پیدا شو نوهغه د دین رنګ او انوار او فیوضات چې دده په زړه کې دي هغه به د تا زړه ورنه اخلي، ستا زړه به هم رنګیږي، په دې سره مقام د بقا پیدا کېږي، فنا خو راځي مقام د بقا پیدا کېږي چې دده په ناسته کې محبت پیدا کېږي بیا الله پاک ﷻ سړي ته ورپه یادیږي ، بیا په زړه کې هغه د الله پاک ﷻ نوم قرار او تمکین نیسي. دده ظاهر قالب چې په شریعت باندې برابر ده دده په ناسته او تعلق کې هغه به په تا باندې اثر کوي چې د تا ظاهر به په شریعت باندې رنګیږي، خو د نبي صلی الله علیه وسلم د انوارو انعکاس چې راځي هغه به د شریعت په متابعت راځي.

## د ولایت دوهم سبب

دوهم سبب د ولایت د حصول له پاره: کثرت (ډېروالی) د ذکر ده: چې څوک ذکر ډېر کوي دغه سړي ته به بیاد ولایت مقام پیدا کېږي. دا بیا ولې سبب ده ؟ ځکه چې د انسان زړه دګناهونو له امله زنګ نیسي، چې ګناه وشي نو په زړه کې تور داغ پیدا شي ، که توبه وابستل شي بیا هغه داغ لرې کېږي اوکه نه بیا ځای نیسي. د حضرت نبي کریمﷺ مبارک حدیث ده چې: (لکل شیئ سقالة وسقالة القلب ذکرالله ) د هرې اوسپنې له پاره د هرشي له پاره رڼګمال شته، صفایي یې پرې کېږي چې هغه زنګونه یې بیا بېرته لېرې کېږي اود زړه له پاره رڼګمال د الله پاکﷻ ذکر ده.

اوس نودغه زړه چې د ګناهونو د کدوراتو له وجې توروالی پکې راغلی ده دا په ذکر سره صفا کېږي چې په زړه کې صفایي راغله نو قابل د انعکاس ګرځي ، شیشه چې په خاورو کې پټه وي د لمر رڼا په دې کې انعکاس کېږي ؟ دا شیشه چې په دې کې د لمر رڼا دومره ځای نیسي چې بیا بل دېوال رڼا کوي دا په هغه صورت کې چې دا شیشه به صفا وي نو انعکاس چې په کوم زړه کې راځي هغه به صفا وي اوددې د صفایي لاره او طریقه حضرت نبي کریمﷺ یواځې ذکر ښودلې ده. چې (لکل شیئ صقالة و صقالة القلب ذکرالله ) اوس نو دا ذکر چې څومره ډېرېږي دغومره صفایي پیدا کېږي ، څومره چې صفایي ډېرېږي دغومره انوار ډېر پکې

ځاییږي، ځکه په اولیاوو کې هم تفاوت ده، چې چاته څومره انعکاس وي، څومره چې د یو چا د ذات اقدسﷺ سره تعلق زیاتیږي دغومره هلته فیوضات زیاتیږي.

نودغه د ولي د ولایت له پاره چې مونږ سبب ذکر کړ، په تفسیر کې مې تقدیم او تاخیر وکړ.

## داولیاء کرامو اقسام

دا اولیاء بیا په دوه قسمه دي: مُریدین او مرادین.

نودا څومره پورته بیان چې مونږ وکړو دا د مریدینو مقام ده، هغه څوک چې خلیل الله دی، مرید د خدای پاکﷻ دمحبت اراده لري، نودی به کوشش کوي اوپه دغو کوششونو باندې به خدای پاکﷻ دی داسې مقام ته رسوي چې بیابه د خدای پاکﷻ عشق او محبت دده په سینه کې ځای پیدا کوي. بیا به په نورو کې مؤثر واقع کیږي.

بله ډله د اولیاووته (مرادین) ویل کیږي، چې مطلب دوی خپل مراد د رب ته رسیدلي دي، مرادین په اصطلاح دوهمه محبوبین. یو محبین دي او بل محبوبین دي. یومریدین دي او بل مرادین دي. مراد ته رسیدلي محبوب د کردګار دي، دهغه مقام بیا داده چې دالله ﷻ د چا سره محبت پیدا شو نو جبرئیل؈ ته حکم وکړي چې زه د فلانکي سره محبت لرم، ته محبت ورسره کوه، هغه په آسمانونو کې اعلان وکړي، هغوی راشي ځمکې ته د

خلکو په زړونو کې هغه خدای پاکﷻ محبوب واقع کړي. د نېکو خلکو محبت له یوچا سره دا دلیل د محبت ده. هغه علامه چې ما مخکې ذکر کړې هغه ددې مرید وي.

او هغه اولیاء چې مرادین دي دهغو علامه داده چې د مسلمانانو به له ده سره ډېره جوړه وي. له یو چاسره چې د مسلمانانو مینه زیاتېږي او په زړونو کې یې قدر زیاتېږي دا ددې دلیل ده چې دی محبوب ده، ځوک چې په مشرب دحضرت رسول اللهﷺ وي هغه محبوبین دي، هغه مرادین دي، هغو ته خدای پاکﷻ دغه مقام ورنصیب کړي.

## د اولیاء کرامو آخري انجام او عاقبت

اوس تر ټولو وروستنۍ خبره د اولیاوو کرامو انجام او عاقبت ده. اوس په قرآن کریم او احادیثو کې دغو بزرګانو انجام څنګه بیان شوی دی؟ په قرآن کریم کې ددوی انجام داسې بیان شوی چې: (لَهُمُ الْبُشْرٰی فی الحیوة الدنیا وفی الاخرة) ددغو اولیاء کرامو له پاره زیری دی په ژوند ددنیا او آخرت کې. زیری د دنیا په ژوند کې څرنګه دی؟ د حضرت نبي کریمﷺ په ژوند کې، دده په حیات مطهره کې زیری دا و چې ده به بشارت د جنت ورکاوه، ځوک چې د خدای پاکﷻ ولي و هغه ته د حضرت نبي کریمﷺ په ژبه وویل شول چې: (ابوبکر فی الجنة عمر فی الجنة عثمان فی الجنة علی فی الجنة طلحة فی الجنة) دغسې لس صحابهٔ کرامؓ

بېي په يو وار ذکر کړي دي. دا خو په يوه واقعه کې لس ذکر شوي دي. د حضرت عبدالله بن سلام ﷺ په باب کې وايي چې: دا جنتي ده. د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په باب کې وايي چې: (رجلٌ صالح) دا ډېر نېک سړی دی. حضرت علي ﷺ ته وايي چې: ته ماته داسې يې لکه حضرت هارون ﷺ حضرت موسی ﷺ ته، خو يوائې فرق دادی چې له ما نه وروسته بل پيغمبر نشته. څوک چې مسلمان وي او زه چې د چا محبوب يم حضرت علي ﷺ به د هغه محبوب وي. (من کنتُ مولاه فعليُ مولاه) د انصارو مبارکانو په حق کې حضرت نبي کريم ﷺ فرمايي او بشارت ورکوي چې: (حبُ الانصار من الايمان و بغض الانصار من النفاق) د انصارو مبارکانو د حضرت نبي کريم ﷺ سره محبت دا د ايمان علامه ده. ولې هغه ټول د خداوند متعال ﷻ دوستان دي، څوک چې ددوی سره محبت کوي دا مسلمان ده. هغه ټول د الله پاک ﷻ اولياء او دوستان دي. څوک چې بغض ورسره کوي هغه منافق ده. د ټولو صحابه کرامو ﷺ په باب کې مجموعي بشارت د خدای پاک ﷻ له طرفه دادی چې: (رضی الله عنهم و رضوا عنه). د حضرت نبي کريم ﷺ له طرف نه بشارت دادی چې: (اصحابي کالنجوم بايهم اقتديم اهتديتم) همدارنګه د صحابهٔ کرامو په حق کې اود دوی د مرتبې په هکله دی مبارک ﷺ فرمايي چې: زما په صحابه وو پسې بد مه واياست. که تاسې د اُحُد د غره په اندازه مال صدقه کړئ هغه ددوی د يو پاو او يا نيم پاو صدقې ثواب ته هم نه رسيږي. نو (لهُم البُشری فی الحيوة الدنيا) د حضرت نبي کريم ﷺ په ژوند کې

دخدای پاکﷻ دوستانو تـه د دهﷺ پـه ژبـه د جنت زېری ورکول کېږي. د حضرت نبي کریمﷺ د دنیا نه د انتقال نه وروسته اوس ددغو خلکو لـه پاره بشری ( زېری ) شته که نه ؟ هو شته . هغه ( رؤيا ) خوبونه دي ( رؤياء في النوم او في اليقظة ) پـه ويښـه ليدل دهغه نه تعبير په کشف سره کېږي، د خوب په حالت کې ليدل پـه خوب سره کېږي ، ددغـو خلکـو لـه پاره بشری کلـه الهامـات د وظائفو د مراقبو په حال کې الهام ورته شروع شي ، خپله ده ته يا يو بل ولي ته . دده مقام خدای پاکﷻ په الهام سره ورمعلوم کړي. يا په خوب کې

حضرت نبي کريمﷺ فرمايي چې: نبوت ختم شو خو بشارات به وي، څوک ورڅخه پوښتنه کوي چې: بشارات څه شی دي ؟ حضرت رسول اللهﷺ ورته وايي چې: رؤيای صالحه (ښه خوبونه) دا څه معنا ؟ مطلب داچې سړی پـه خپلـه خوب وويني اوپـه خوب کې خپل حالات ښه وويني ، يا يې بل څوک ښه وويني، خو خپل ځان ښه ليدل يا د بل له طرف نه ښه ليدل داپه هغه صورت کې چې دی به عملاً هم ښه وي. بيا به رؤيای صالحه تـه اعتبار وي. د منافق او فاجر له پاره خوب اعتبار نه لري.

رؤيای صالحه څکه بشارات دی او څکه قابل دبشارت دي، څکه چې دا د نبوت شپږ څلوېښتمه حصه ده. نو حضرت نبي کريمﷺ فرمايي چې نبوت ختم شو خوبشارات به پاتې وي.

دا خو يې د دنيا انجام ده. اوپه آخرت کې يې انجام څه شی ده ؟ (وفي الاخرة) ددوی له پاره زېری دی په آخرت کی. لـه آخرت

نه مطلب د زنکدن حالت، د قبر حالت اود حشر د اول وار د راپورته کېدا دا ټول عبارت دی. څکه چې دا ټول د آخرت مقامات دي. نو ددغو نېکانو او بزرګانو له پاره زېری دی. د زنکدن په وخت کې ورته داسې زېری دی چې: ﴿ یاایتها النفس المطمئنة ارجعی الی ربك راضیة مرضیة فادخلی فی عبادی وادخلی جنتی ﴾. ملائکې ورته راشي ، دغه ملائکې ددغو انسانانو له پاره زېری ورکوي اود زنکدن په حالت کې ورته وايي چې: ﴿ الا تخافوا ولا تحزنوا و ابشروا بالجنة التی کنتم توعدون ﴾ اوپه دغه حالت کې ده ته دخدای پاک ﷻ له ملاقات نه زيات بل شی محبوب نه وي. اودايې رغبت وي چې هسې زر مې روح قبض کړل شي ترڅو دخدای پاک ﷻ ملاقات وکړم.

## په قبر کې اولیاء کراموته زېری

او په قبر کې يې بشری ﴿ زېری ﴾ داده چې: دده عمل صالح ورته په ښائسته شکل کې راشي زېری ورباندې کوي چې انعامات الهي دې مبارک شه. دی ورڅخه پوښتنه کوي چې ته څوک يې ؟ ستا رنګ د زېري کوونکي ده، دی به ورته وايي چې: زه ستا هغه نېک عمل یم. ملائکې به ورته راشي هغه به هم په قبر کې تر پوښتنو اودده له صحي جواب ورکولو وروسته ده زېری ورکوي چې مونږ مخکې لا پوه وو چې ته به مونږ ته صحي جوابونه راکوې. مونږ ولې پوه وو ؟ يا له دې وجې چې مونږ ستا د دنيا اعمال صالحه ليدلي وو ، يا له ظاهري انوارو څخه مونږ معلومه

کړه. چې په قبر کې په ده د عبادت آثار پراته دي، چې د هغې په
اثر يې ملائکې پېژني.
بيا ملائکې زېرى ورکړي چې د دنيا دغمونو او تکليفونو
څخه خلاص شوې ستا له پاره ابدي ژوند او راحت دى. (نَـوْمْ
کنومة العروس) د نوي واده والا په شکل باندې آرام خوبونه کوه.
کله چې بيا له قبر نه راپورته شي بيا په هغه حالت کې هم ددوى له
پاره بشرى وي. د قبر نه چې سرى راپورته شي د هيبت حالت وي،
چې مخکې مې درته وويل چې: کله به داسې دروند هيبت وي چې
يو بل به سره نه پېژني، لکن دلته ددغو بزرګانو هيبت او وېره
هرڅه ختمېږي ، دلته بيا ددوى له پاره بُشرى وي. دا د اولياوو له
پاره د زېري عاقبت ده انعام نه ده.

دا د زيري په مناسبت به يوه بله خبره هم وکړو. په حديث
شريف کې حضرت نبي کريمﷺ فرمايي چې: زما په امت کې داسې
خلک شته چې نه انبياء دي، نه شهداء دي خو په قيامت کې به
ددوى په حالت باندې انبياء عليهم السلام او شهداء کرام هم
غِبطه او تمنا کوي. او حضرت نبي کريمﷺ قسم کوي چې: مخونه
به يې د نور وي. د نور په منبرونو به ناست وي. په دوى به کومه
وېره نه وي په هغه ورځ چې په نورو خلکو به خوف وي، دوى به نه
غمجن وي په داسې حال کې چې په دې ورځ به نور خلک غمجن
وي. نو صحابهٔ کرامو؇ پوښتنه وکړه چې: يارسول اللهﷺ! (مَنْ هُمْ
؟) دا څوک دي ؟ حضرت نبي کريمﷺ ورته وويل چې دا (
المتحابون في الله) دوى يو د بل سره محبت خاص د خداى

پاکﷻ د دین له پاره وي (من غیر رحم بینهم ولا اموال یتعطونهم) بې د خپلوی او صلۀ رحمي نه او بې د دنیا د مال او دولت له راکړې ورکړې نه دوی په خپل منځ کې محبت درلود. د محبت منشاء یې نه د خپلوي لحاظ وي نه مال او دولت وي بلکې یواځې الهي رضا وي.

نو دغو خلکو ته به الله پاکﷻ دغه مقام اومرتبه ورکوي. له حضرت عمرؓ نه دا روایت نقل ده. دا محبت د خدای پاکﷻ د رضا له پاره چې دوه مسلمانان یې په خپل منځ کې کوي نودا یې بیا انجام او انعام ده. دوی ته دا مقام ولې پیدا کېږي چې له هر قسم پرېشاني نه به په قیامت کې محفوظ وي ؟ له حضرت معاذ بن جبلؓ نه روایت ده چې: (یقول النبی صلی الله علیه وسلم قال الله عز وجل: وجبت محبتی للمتحابین فیَّ والمتجالسین فیَّ والمتزاورین فیَّ والمتبازلین فیَّ ) [رواه مالك و احمد والطبرانی والحکم والبیهقی] د حدیث شریف آخري تکی رانه هېر شو. خدای پاکﷻ فرمایي چې: زما محبت له هغو خلوکو سره واجب ده چې دوی یو بل سره محبت زما د دین په خاطر کوي، له یوه بل سره کېناستل زما د رضا له پاره کوي، د یو بل ملاقات ته چې ورځي خاص زما د دین په خاطر تګ راتګ زما له پاره کوي اوزما له پاره خپل مالونه خرڅه کوي.

د اولیاء کرامو ملاقات او دهغوی زیارتونو ته تلل قسم په خدای ده چې دومره زیاتې ګټې پکې دي چې په خپل عمل سره یې په ډېر وخت کې هم نه شي ګټلای. هغه دعاګانې او بنه کیفیت چې

دعوی وويني نو بيا هلته انسان ته معلومات کيږي. نو خدای
پاکﷻ وايي چې: له هغو خلکو سره زما محبت واجب ده چې دوی
راکړه ورکړه ، تعاون، محبت زما د دين له پاره کوي. او چې له چا
سره د خدای پاکﷻ محبت پيدا شو نو دی د محبوبينو له ډلې نه
شو، اوس چې محبوب شو نو د خدای پاکﷻ د دوستانو او
محبوبينو او مُرادينو له ډلې نه شو. ځکه خدای پاکﷻ فرمايي
چې: ( الا انّ اولياءَالله لاخوف عليهم ولاهم يحزنون ) چې زما په
وليانو به نه خوف وي اونه به دوی غمجن وي.

اصل ثمره نتيجه د ولايت مونږ لا تراوسه ذکر کړې نه ده.
بواخې علامې، تعريف، د عاقبت په لحاظ په قرآن کې زيری بيان
شو.

## دولايت نتيجه

نو نتيجه د ولايت جنت ده. زيری په دنيا کې ورکړل شو،
صل ځای د انعام به چيرته وي؟ په جنت کې به وي . دا زيری دوی
ته په قبر کې ورکړل شو، زيری د حشر په حالت کې ورکړل شو. په
قيامت کې به خدای پاکﷻ څرنګه مقام اولياء کرامو ته نصيب
کوي ؟ نو په حديث مبارک کې راځي چې: د اولياء کرامو ځای به
د مسلمانانو په نورو طبقاتو په جنت کې دومره پورته وي لکه
مونږ چې له ځمکې نه آسمان ته ګورو او هغه غټ ستوري چې په
افق کې ځليږي، نو هلته به ددوی منازلو ته په جنت کې نور
مسلمانان داسې ګوري. او هغه انوار يې دي چې په قيامت کې به

دوی په هغو آسانو سپاره وي چې وزرونه به يې وي او زينونه به يې له ياقوتو او لاجبرو جوړ شوی وي. دوی چې کوم ځای ته وغواړي نو په هوا باندې به يې دغه آسان هغه ځای ته رسوي. د لاندنيو طبقاتو په انوارو به پټ والی او خفا راځي او پوښتننه به کوي چې دا زمونږ انوارات چا راپټ کړل . ځکه خدای پاک فرمايي: ﴿ إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ۞ حَدَآئِقَ وَأَعْنَٰبًا ۞ وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا ۞ وَكَأْسًا دِهَاقًا ۞ ﴾ په رښتيا متقينو لره کاميابي ، باغچې ، انګور او پېغلې همزولې او جامونه د شرابو نه ډک به وي .

ددې آيت خودا معنا شوه چې قرب الهي د الله دوستي د هغه پيدا ينښت هغه بې له دې نه نه راځي. خو سببونه يې دا شو. سبب خو مؤثر نه وي، مؤثر خو الله پاک ﷻ ده. ځکه محبوبين مرادين دي هغه بيا ددغونه هغه مقام چې طبقه د اويسيانو ده چې خدای پاک ﷻ يې هغه مقام ته رسوي خو کوشش به دا کوو چې ترڅو له نېکو خلکو سره ډېره ناسته پاسته وکړو. نو چې محبت وي او هغه هم په اخلاص کې نو بيا به کار جوړېږي. اوکه داسې نه وي نو بيا خو منافقين هم له پيغمبر ﷺ سره کېناستل، خو چې اخلاص يې نه درلود نو بيا دوی هم له دنيا څخه کافر ولاړل. په دې لاره کې به انقياد او اطاعت وي اوکه هغه دخپلې طريقې له بزرګانو نه مخالفت او انکار شروع شي نو بيا سراسري هلاکت دی، ترقي به په خوب کې هم ونه ويني.

حضرت صاحب مبارک ته چا شکایت وکړ چې صیب! دومره وخت مې په وظائفو کې تېر شو او هېڅ په مخ نه ځم اونه په څه باندې پوهېږم. خلک چې وظیفې واخلي نو کشف او نورې لارې چارې یې ښې پر مخ روانې وي او ماته په دا دومره وخت کې هېڅ هم په لاس نه دي راغلي. وایي ده مبارک ورته وویل چې: خوراک کم کړه، مجلسونه کم کړه او ذکر ډېر کړه، د طریقت رنګ مه بدوه.

حضرت مجدد صاحب قدس الله سره العزیز فرمایي چې:

چشم بندو گوش بند ولب ببند　　　گر نبیدی سرِ حق بر من بخند

سترګې له غلط نظر څخه وساته، ژبه له غلطو خبرو څخه راایساره کړه او غوږونه غلطو خبرو ته مه نیسه. که بیا دې هم الهي اسرار ونه لیدل نو بیا په ما پورې وخانده. چې تا خو هسې راته خبره کړې وه او څه نتیجه یې نه درلوده.

دا اندامونه خو ټول د زړه جواسیس دي، زړه ددوی له لارې خرابیږي، ښائسته شی دې ولید نو د زړه محبت دې دالله پاک ﷻ له ذکر نه راوګرځاوه. په غوږونو باندې دې سرود او آوازونه واورېدل نو دزړه محبت دهغه په طرف ولاړ. نو له دغو ناوړه او بې خونده کارونو څخه دغه اندامونه راایسار کړه په خپله به دې کارونه ټول که خدای ته منظوره وي جوړ شي. دا کارونه چې ته وکړې نو بیا به دې په وظائفو کې هم اثر وي. که نور په هېڅ نه پوهېږې نو په دې خو به ضرور پوهېږې چې قلبي اطمینان به ورته حاصل شي اود خدای پاک ﷻ په بندګي به ورته لذت حاصلیږي.

په خپله الله پاکﷻ فرمايي : ﴿ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَتَطۡمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكۡرِ ٱللَّهِۗ أَلَا بِذِكۡرِ ٱللَّهِ تَطۡمَئِنُّ ٱلۡقُلُوبُ ﴿٢٨﴾﴾ د خدای پاکﷻ په ذِکر زړونه آرام پيدا کوي. د وظيفې اصل ښه توب دغه ده داچې مونږ له هرچا سره وظيفې کوو ددې مشائخو کرامو د هريوه د وظائفو جلا جلا کيفيات وي. د يو چا دوظيفو په ښه توب او بېکارتوب څنګه پوهېږي دا علم الله پاکﷻ ورکوي، چې بيا له چانه پوښتنه وشي چې زړه دې تنګيږي او کنه ؟ دی وايي چې هو ! دا زړه يې ولې تنګيږي ؟ ځکه چې هلته په زړه کې کدورات وي نو ځکه هلته زړه په تنګ وي. ځکه چې مونږ مخکې په تفسير کې ويلي و: هغه درې صحابهٔ کرامؓ چې پنځوس ورځې حضرت نبي کريمﷺ او نورو صحابهٔ کرامو‌ؓ ورسره مقاطعه کړې وه . او خدای پاکﷻ بيا ددوی حال داسې بيانوي:﴿ وَضَاقَتۡ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ﴾ ځمکهورباندې تنګه شوه . دلته تفسير ليکي : داچې ولې ځمکه پرې تنګيږي ځکه چې زړه يې په تنګ ده، ځکه کور خوند نه ورکوي، دا ثر د څه شي ده ؟ د الله پاکﷻ د حُکم مخالفت. او چې کله يې توبه قبوله شوه نو څرنګه يې بيا شرح صدر نصيب شو. ځکه چې هلته هغه کدورات ختم شو. داچې زړه ته تنګي پيدا کېږي دا هلته پيدا کېږي چې نظر خراب شي، غوږونه غلط څه واوري، خوراک غلط وشي، چې هرڅه غلط شي هلته في الحال اثر پيدا کوي. خو په دې اثر باندې د اهل طريقت نه پرته نور خلک نه پوهېږي. په پاک ځای کې د بوی اثر ښکاره کېږي، په

سپینه جامه باندې اثر د خیرې ښکاره کیږي. ښګیان توله ورځ تشنابونه صفا کوي سره له دې چې پوزه یې نه وي تړلي خو بوی هم نه ورځي.

په حدیث مبارک کې راغلي چې: څوک دروغ ووايي نو کرام الکاتبين ملائکې چې همیش له ده سره ملګري وي اوده اعمال لیکي، نو هغه ددغه شخص د دروغو له وجې یو میل لرې ولاړې شي. یو وخت حضرت نبي کریمﷺ ناست و چې څه بدبویي راغله، نو حضرت نبي کریمﷺ وویل چې: دا په کوم ځای کې منافقینو د مسلمانانو غیبت وکړ. اوس که څوک وايي چې دا غیبتونه خو نن صبا ډېرزیات کېږي نو اوس یې ولې د بدبویي احساس نه کیږي؟ نوجواب یې دادی چې په هغه وخت کې فضا پاکه وه، ګناهونه ډېر نه و،نو په صافه فضا او پاک ماحول کې د بدبویي اثر زر ښکاره کیږي. په تتی کې د بدبویي اثر زر نه ښکاره کېږي اوپه پاک ځای کې زر ښکاره کېږي.په حدیث شریف کې دي چې: په زړه کې د ایمان نور وي. داچې د خدای پاکﷻ ذکر ډېرېږي نو نور زیاتیږي. اوس نو چې ګناه وي نو طبعاً هغه نور ختمیږي. سترګو چې رڼا لیدلي وي نو چې کله برق ولاړ شي تیاره پیدا کېږي. او په تیاره کې چې څوک روان وي لکه داشپانه ټول عُمر د شپې په غرونو کې روان وي او څه فرق نه ورکوي. خو له کور نه چې څوک راووته او په کور کې یې برق وي بیا نو لار نهویني. چې یو ځل رڼا وي نو بیابه په تیاره پوهیږي. چې له اول نه یې تیاره وي بیا د تیارې وربانديې څه اثر نه وي.

دغه د وظيفو په اصطلاح کې هم دا خبره ده، دا زمونږ
وظيفې ډېرې کمزورې دي.
په بخاري شريف کې د توجهاتو څلور قسمه ذکر کېږي:

## توجه په څلور قسمه ده

اوس توجه خو په څو قسمه ده دلته کومه توجه شوې ده؛ نو کتابونو
ليکي چې توجه په څلور قسمه دی:
اول توجه انعکاسي، دوهم القائي، دريم اصلاحي او څلورم اتحادي،
د دغو څلورو قسمو توجو مثالونه په محسوساتو کې په مختصره توګه
بيانيږي:
**دانعکاسي توجه**: مثال داسې دی لکه چې يو سړی خوشبويي
استعمال کړي وي او يو مجلس ته ورشي، نو د دغه مجلس ټول خلک
دده له دغې خوشبويې نه مستفيد شي او منفعت ورته ورسيږي، لکن
کله چې هغه سړی د مجلس نه ووت يا هغه خلك له مجلس نه ووتل
نو خوشبويي ختمه شي ځکه چې داعارضي فائده وه، نو ابتدا چې سړی
مريد شي او له يوه پير يا خليفه صاحب نه بيعت وکړي؛ نو ددې نفس
بيعت دومره ګټه ده ته رسيږي چې کله هم د خپل پير او مرشد په مجلس
کې ناست وي نو د هغه مرشد دانوارو انعکاس او استفاده کولی
شي، يا د هغه شيخ په زړه کې چې کوم انوار او فيوضات چې د خدای پاك ﷻ
له طرفه نازليږي د هغه فيوضاتو او انواراتو تجليات دده په زړه باندې

هم راځي اوشوق دوظيفي ورسره پيداکيږي ،لکن کله چې دی دخپل مرشداوشيخ له مجلس نه جداشي بياهغه اثرنوي.

يالکه دبرق بلف چې بَل شي اوهغه بلف ته مخامخ يوه شيشه کيښودل شي نوترڅوچې برق بَل وي ددغې رڼايي په دغه شيشه کې وي،نودغه شيشه دهغې رڼا نه انعکاس کوي، اوپه بل څه شی باندې هم وړانګه غورځوي خوکه چېرته بلف مړشي ياشيشه له برابرې لرې کړای شي؛نوهغه انعکاس اورڼايي هم ختمه شي ،نومريد هم په ابتدايي مرحله کې دخپل پيراومرشدپه يواځې بيعت سره چې ترڅوده خپل وظايف نه وي شروع کړي دومره ګټه ورته رسوي چې دپيرپه مجلس کې کيناست نودشيخ دزړه دانواروانعکاس دده زړه ته کيږي لکن کله چې سره جداشي هغه اثرختم شي.

**دوهم قسم توجه القائي ده** :ددې مثال داسې ده لکه چې پخواني شيطان چراغونو کې به سرې تيل اوپلته واچول اوبيابه يې له بل چراغ نه بل کړ،نودی به رڼاشو،دابيا:ردې بل چراغ پورې تړلی نه دی چې بل چراغ وي نورڼاکوي اوکه نه وي نو رڼا نکوي ،لکن رڼايې ضعيفه وي په کم باد سره مړکيږي ،نوی مريدهم چې کله اذکارشروع کړي يوڅه ترقي وکړي دهغه اولني حالت نه چې توجه انعکاسي وه يوڅه په وظيفوکې کوشش شروع کړي نودده په زړه کې خپل انوارپيداشي دهغواذکاروااثرپيداشي،نوکله چې له خپل شيخ سره وي نوانواريې ډير تيزوي اوچې کله دخپل شيخ نه جداشي نوانوارخونه ختميږي خواحتياط غواړي اودشريعت په چوکاټ باندې به ځان برابره

وي،خو که خوراك كډوډ شي ،مجلس كډوډشي اوبې احتياطي وشي
نوبيا انوارختم شي اوبيابيرته تياره جوړه شي.

**دريمه توجُه اصلاحي دي :** داله مخکنيودواړونه قوي ده ددې داسې
مثال ده لکه يولوی دریاب چې اوبه پکې رواني وي اوله دې دریاب نه
يووړوکی نهرجداشي ،په دغه نهرکې دخپل گنجايش په اندازه اوبه
پکې رواني وي ،خودغه نهرپه کم شي نه بنديږي ترڅوچې دده په خوله
کې لويه تيږه نوي لوېدلې اوخوله يې بنده شوې نوي اوله دې نهرنه يوې
اوبلې خواته لړونه نوي شوي، دارنگه دمريدحال دی چې کله په خپلو
وظايفوکې شه کوښش وکړي نوددې کوښش داسې اثر پيدا کيږي چې
نفس له خپل پيرسره رابطه ونيسې نودته يې فيض اوبرکت دهغه نهرپه
شکل رسيږي چې دافيض اوبرکت په مامولې لهواولعب اوبيکاره
مجلسونو نه ختميږي ترڅوچې لوی گناهونه ورنه صادرشوي نوي
دافيض اوبرکت جاري وي،اوکه چيرته لوی گناهونه صادرشي
نوترڅوبې چې اصلاح نوي شوي ،چې هغه عبارت ده له توبې نه ،ترهغه
دشيخ فيض اوبرکت بيانه جاري کيږي،ځکه چې اصل نهرخوشته
خوبواخې خوله يې بنده شوې دی، کله چې په اخلاص توبه وباسي هغه
فيوضات بيرته ده ته دپخوا په شان جاري شي.

**څلورمه توجُه اتحادي ده :** داتوجُه اخرنۍ مرحله دتوجُوگانو ده چې
شيخ خپل زړه دمريدزړه ته متوجې کړي ،نوشيخ القادنسبت تامه
وکړي يعنې ټومره کمالات اوفيوضات چې په ده کې وي هغه ټول
دخپل خان مريدته منتقل کړي، نوبه هغه کې هم هغه کمالات
اوفيوضات پيداشي چې دهغه په پيرکې موجودۍ ،داچې بيعت انتهاته

رسیږي او د خلافت سلسله ورته پیدا کیږي نو خپل ټول کمالات خپل مرید ته انتقال کړي، ددې دا معنا نه دی چې شیخ له دغو فیوضاتو او کمالاتو نه خالي شي بلکې دشیخ دفیوضاتو مثل په مرید کې پیداشي[1].

دهر مُریدان داسې دي چې دمشائخو سره ګډ وي ښې وظیفې کوي، ښه کوشش کوي، خو چې کله بل ځای ته ولاړ شي چې یو څه وخت تېرېږي ، تعلق ختم شي ، دلته خو د کثرت مجالست سبب ده، چې ناسته ولاړه به ډېره کوي ، چې ناسته ولاړه ختمه شوه محبت ختمیږي. ما درته وویل چې دا ولې مؤثر ده ؟ ځکه چې هغه دده د زړه شی د ستا زړه ته راځي. دده د قالب شی ستا قالب ته درځي. چې تعلق ختم شو هغه شی پردی شو او بېرته په ورو ورو درنه ځي. محبت به له نیکو خلکو سره ساتو. بیا نو امید شته چې خدای پاک ﷻ به یو څه پیدا کړي.

﴿لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِۚ لَا تَبۡدِيلَ لِكَلِمَٰتِ ٱللَّهِۚ﴾ خدای پاک ﷻ د خبرو تبدیل نشته چې ولي ته یو وار بشارت او وعده خدای پاک ﷻ ورکړه نو بیا په دې کې تغیر او تبدیل نه راځي. و ذلک هو الفوز العظیم

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیرخلقه محمد وعلی اله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

---

[1] ضیاء البخاري شرح صحیح البخاري اول ټوک ۲۰۵مخ.

# (۳) مجلس

## له خپل مرشد سره مینه او محبت او له هغه سره د تعلق اهمیت

په طریقت کې تر ټول اهم او ضروري شی دادی چې دیو سالک له خپل شیخ سره تعلق زیات وي، د مخکنیو اولیاء الله وو حالاتو اوواقعاتو ته که ځوک وګوري دوی ته چې څومره لویې مرتبې اومقامات په لاس ورغلي دي داټول په ملازمت ، محبت، انقیاد اودخپل شیخ دخدمت کولو له امله ورته په لاس ورغلي دي.

## دخپل پیر په اراده دحضرت خضرعلیه السلام نه اعراض کول

په یوه واقعه کې راځي چې شاه نقشبند رحمة الله علیه د امیر کلال بخاری رحمه الله دلیدلوله پاره له خپل کور څخه ووت، په لاره کې حضرت خضر ﷵ په مخه ورغی، شاه نقشبند رحمة الله علیه هېڅ ورته ونه کتل، نوبیا حضرت خضرﷵ ځان ورو پېژانده چې زه خضر یم اوبه ماپسې خلک له لرې لرې ځایونو څخه کوښښونه کوي چې له ماسره ووېني اوته زما لوري ته هېڅ التفات نه کوې! نوده په ځواب کې ورته وویل چې: زه له خپل کور څخه دخپل پیر او مرشد دلیدلو په اراده راوتلی یم، نه ستا له پاره. یعنې حضرت خضر ﷵ په مخه ورغی، هغه ددې تمنا او آرزو لري چې شاه صاحب رحمة

الله علیه ورسره مجلس وکړي، خو دی حضرت خضر عليه السلام ته توجه نه کوي، حضرت خضر عليه السلام چې دچا معاون جوړیږي هلته جوړیږي چې دچا له خپل شیخ سره تعلق اومحبت وي، یو ولی چې دچا معاون واقع کیږي داهلته چې دهغه له خپل شیخ سره تعلق جوړ وي.

ددغې سلسلې چې څومره مشایخ کرام دي آن تر حضرت حضرت نبي کریم ﷺ پورې نودچاچې له خپل شیخ سره تعلق او محبت وي نوددغو ټولو له ده سره علاقه پیداکیږي اوکه خدای مه کړه په دغه لاره کې یې له یوه سړي څخه نفرت وشو او کرکه یې ورڅخه وکړه بیانو دټولو ورڅخه کرکه اونفرت کیږي، ځکه ددوی ټول کار یواځې د الله ﷻ له پاره وي، اودچاکار چې یواځې د خدای تعالی ﷻ له پاره وي اوته له هغه سره عناد کوې نودا په اصل کې ددغې ټولې سلسلې سره عناد دی، نوځکه د سړي کار خرابیږي، داچې دیوه سړي تعلق او محبت پیداکیږي خوددغه نیت له وجې پیداکیږي چې دخدای ﷻ رضا له پاره ده.

په پیر یا استاد کې چې کوم کمال ده هغه هم ددغه دین له امله ده، نوځوک چې ددوی سره محبت لري هم هغه ددغه دین په خاطر یې لري، که هغه دنیاوي تعلقات په شخصیاتو باندې بنا وو لکه چې حضرت حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي چې: کله سړی مړ شي ، له ده سره درې ملګري روان وي، عمل یې هم ورسره وي، دنیا هم ورسره تریوڅه اندازې پورې وي، خو په پای کې دغه خپل خپلوان او هستي جایداد ورڅخه بېرته راګرځي، یواځې همدغه خپل عمل ورسره په قبر کې وي.

نوکه له يوچا سره دشخصيت په بنا ملګرتيا او دوستي وه اوددين په خاطر نه وه، نودشخصيت په لحاظ دهغې دوستۍ ورته هيڅ ګټه نه رسيږي، هغه هم دخداى تعالىﷻ يو بنده اومخلوق ده، په خپله په هرڅه کې الله تعالىﷻ ته محتاج ده،نوتاته به يې څه ګټه ورسيږي؟ اوچې کله تعلق او محبت ددين په خاطرشو لکه يوڅوک له عالم سره محبت کوي هغه دهغه د علم له امله يې کوي، نو خامخا به يې ده ته ګټه رسيږي.

څکه حضرت حضرت نبي کريمﷺ فرمايي چې له علماوو سره مينه او محبت دا په حقيقت کې له ماسره ده او له ماسره مينه اومحبت له الله تعالى سره محبت ده، له علماوو کراموسره دښمني لۀ ماسره دښمني ده اوله ماسره دښمني له الله تعالىﷻ سره دښمني ده.

نو دعلماء کرامو ، حضرت نبي کريمﷺ او الله تعالىﷻ تعلق سره تړلى ده، مطلب داچې له يوه سره محبت له ټولو سره محبت ده اوله يوه سره دښمني او عداوت له ټولو سره دښمني ده.

نو تر ټولو اړين او ضروري شی او ضروري خبره داده چې ديوه مُريد او سالک له خپل شيخ سره علاقه وي.

مطلب داچې په دغو مجلسونو کې ممانعت نشته، مثلاً ديوې طريقې چې څومره مشائخ کرام دي لکه زمونږ دحضرت صاحب مبارک د سلسلې چې څومره مشائخ کرام دي ددوی ټولو په خپل منځ کې يوبل ته اجازه شته، مطلب داچې په ورتلو، صحبت، توجه

کولو اوپه وظیفو بدلیدلو کې یوبل ته اجازه شته. خو اعتماد به دې په خپل شیخ وي. په اوله ورځ چې دې له چاځخه بیعت کړی، که څه هم دبل چا په مجلس کې تاته څه تاثیر پیدا کېده بیابه هم ته داوایې چې داماته دخپل مرشد له طرفه ده، له چاسره چې زما تعلق دی،ځکه دغه لاز اول هماغه مرشد درته خلاصه کړې ده. دبلې سلسلې دمشائخو سره دغسې په مجلس او صحبت کې څه ممانعت نشته، خوپه وظیفو کې کله کیفیات بدل وي، د هرشیخ ځانته خصوصیت وي، ددې له وجې کله کله په وظیفو کې څه تکلیف پیداکېږي.

له دې وجې نه چې دخپل مرشد سره تعلق ډېر ضروري ده د نقشبندیې مبارکې سلسلې کتابونه لیکي چې: که دچا له وسه پورې وي نوباید له خپل مرشد سره هره ورځ ویني، اوکنه په جُمعه کې دې ورسره ویني، اوکه داسې هم نه شي کولای نوپه میاشت کې دې خامخا ورسره ویني ، که بیاداهم نه شي کولای نوپه دوه درې میاشتو کې دې ورسره ویني، که امکان دلیدلو یې نه وي رابطه دې جاري ساتې اورابطه دې نه پرېږدي.

## چې تعلق وي نود پیر له خوابه هم توجه وي

مرحوم سراج المشائخ احمد ضیاء خلیفه صاحب ته مونږ ورغلي وو، نوپه رابطه اوتعلق کې خبره سره یاده شوه، نو خلیفه صاحب وویل چې: مخکینیو سالکینو دا اشعار زیاتره په حقیقت باندې

ویلي دي ، لکه مولانانقیب احمد صاحب د (پنج کتاب) په حاشیه کې لیکلي دي:

کــه راتــه ګــورې درتــه ګــورم

که راته نه ګورې پروا دې نه لرمه

دغه پورتنۍ مصرۍ ددې آیت مضمون دی چې الله تعالیٰﷻ فرمايي: ﴿فَٱذۡكُرُونِيٓ أَذۡكُرۡكُمۡ﴾ تاسې ما یادوئ زه به تاسې یادوم.

نوله خپل مرشد او شیخ سره چې دسالک تعلق اومحبت وي نودغسې به دهغه له لورې هم محبت اوتعلق پیدا کېږي. له دې امله حضرت نبي کریمﷺ فرمايي: ﴿تَهَادُوْا تَحَابُوْا﴾ یویل ته تحفې ورکوئ چې محبت مو سره پیدا شي، دخدای تعالیٰ ﷻ د رضا تعلق مو سره پیدا شي، له دې لارې ستاسې کار ډېر جوړېږي. په یوه بله مصرۍ کې وايي چې:

مینه په تلو راتلو زیاتیږي

کله راځه کله به زه درځم مینه

داهم ددغه آیت او حدیث شریف مضمون ده.

اوپه بل حدیث قدسي کې حضرت نبي کریمﷺ فرمايي: چې خدای پاکﷻ وايي چې: (څوک ما یادوي نو له ماسره به یې محبت پیداشي، اودچاچې له ماسره مینه اومحبت پیدا شو نوپه مابه عاشق شي، څوک چې په ما باندې عاشق شو نوزه به په ده باندې عاشق شم اوپه چاچې زه عاشق شوم نوپه خپل عشق کې یې قتل

کوم اوچې په خپل عشق کې يې قتل کړم نوبيادهغه ( دِيَتْ ) زما
ديدار ده.

نو اصل غرض اومطلب داده چې د ډېرو سالکينو او مُريدانو حال
داسې ده چې په کشرتوب کې يې بيعتونه کړي وي اوبياد ډېرو
لويو کتابونو طالبان وي اوهغه سلسله ټوله ورڅخه پاتې وي. ددې
يواځينی علت دادی چې دهغو له خپلو مشائخو سره تعلق ختم
شوی وي، مريد چې پنځه يا شپږ کاله له خپل مرشد او مربي سره
ونه ويني .نودهغه به له خپل شيخ سره څه تعلق اومحبت وي؟
نودهرچا چې له خپل شيخ سره محبت اوتعلق وي، نودهغه چې
يواځې سترګې پرې لګيږي بيايې دغه مريد له توجه څخه دباندې
نه وي، دهغه هم بيادغسې په دعاګانو کې برخه وي، به هرحال! په
هرعنوان باندې چې وي تعلق يې خامخا ورسره وي.

الحمدلله خدای تعالی ﷻ مونږ اوتاسې ته په دې ژوند کې دومره
موقع او فرصت راکړی دی، که په مونږ کې غفلت نه وي ، نودومره
سختي او تنګي لانه ده راغلې چې مونږ دين او ديندارې ته خلاص
نه يو، يعنې څوک مو په شريعت، علم يا طريقت باندې دومره نه
خوروي چې مونږ نه علم ته خلاص يو، نه ذکر ته خلاص يو اونه له
خپلو مشائخو سره تعلق ساتلای شو.

که يوڅوک دصحابهٔ کرامو﵃ ژوند ته يو نظر وکړي نوپه هغوی
مبارکانو باندې ډېر زيات تکليفونه تېر شوي دي، همدارنګه په
مخکينو اولياء الله مبارکانو باندې څومره تکليفونه تېر شوي دي؟

## يوه دردوونکې واقعه

په (حيات الصحابه) کې دحضرت خبابؓ په هکله يوه واقعه رانقل کوي چې حضرت خبابؓ حضرت عمرؓ ته راغی، حضرت عمرؓ ورته پورته شو اودی يې په خپل ځای کښېناوه. حضرت عمرؓ ورته وويل: ددې ځای د کښناستلو يواځې ته لائق يې! يو بل څوک هم شته چې هغه تر تا هم ور او حقدار دی، ده ورته وويل: هغه څوک ده ؟ حضرت عمرؓ ورته وويل چې: هغه حضرت بلالؓ دی، ځکه چې هغه د اسلام په راوړلو کې ډېرزيات تکليفونه تېر کړي دي. حضرت خبابؓ ورته وايي چې: نه ! زما دې په خدای قسم وي چې ترما يې زيات تکليفونه نه دي تېر کړي، ځکه ده د کفر په وخت کې هم، چې کفارو به عذاب ورکاوه، نودده له پاره داسې يوڅوک د سپارښتنې پيدا کېدل چې دی له هغه عذاب څخه خلاص کړي. په مابانديې داسې وخت هم راغلی دی چې يو وخت کافرانو راته اور بل کړ، کله چې اور صاف او سکاره جوړ شول، نو په دغه سره انګار باندې يې څملولم اوبرسېره په سينه باندې يې راته پښه کښېښوده، زما دې دخدای په ذات قسم وي ترڅو پورې چې تر څو هغه د اور سکروټې زما په وينو او وازدو سړې شوې نه وې ترهغې پورې مې ملا ځمکې ته ونه رسېده، بياحضرت خبابؓ ورته خپله شاه لوڅه کړه او ورته يې وويل چې داد هغې سکروټې ځای دی، هرځای يې داغل شوی و، حضرت عمرؓ چې

ولیدل نو ویې ویل چې ما تراوسه داسې تکلیف د چا نه و لیدلی چې په اسلام کې دې په چا دومره تکلیف تېر شوی وي.

نو دا داسلام له پاره و، دا داسلام له امله و، چې اسلام یې قبول کړی و، بل یې هېڅ جُرم اوګناه نه وه، خودوی مبارکانو داهرڅه د اسلام له پاره په ځان تېرول اوپه سر او سترګو یې قبولول.

## د صبر واقعه

حضرت خبابﷺ فرمایي چې: زه حضرت نبي کریمﷺ ته ورغلم، دیﷺ د کعبې مبارکې سیوري ته ناست و، شړۍ یې په ځان باندې راپېچلې وه، نو ما ورته وویل چې: یا رسول اللهﷺ مونږ ته خو د کفارو له لوري ډېر تکلیفونه رارسیږي ، تاسې دعا وکړئ چې دا تکلیفونه له مونږ څخه لیرې شي، نو رسول اللهﷺ راجګ شو او وې ویل چې: له تاسې څخه مخکې داسې خلک هم وو چې د اوسپنې په ګومنځو یې دبدن ټولې غوښې توږل شوې دي، غوښې او رګونه به یې د اوسپنې په ګومنځو غوځېدل، خو له دې دومره زور زیاتي سره سره یې بیاهم خپل دین ته شاه نه دې ورارولې، خپل دین یې نه دی پرې ایښی اوتاسې بیادومره زر په تکلیف شوئ.

نود بدن غوښې توږل، شکېدل، په دوی باندې د اورونو بلیدل داټول ددې دین له پاره و. مونږ ته یقیناً د فکر اوتاسف ځای دی.

په هر لحاظ، په مونږ باندې الله تعالیﷻ وسعت راوستی دی، مونږ نه دومره منډو ترړو او سترېو ته مجبوره یو چې مشائخ

مبارکان نه پیدا کېږي، لکه په مخکې وختونوکې به خلک له افغانستان څخه روان شو تر شام یا هندوستان پورې به تلل، بیابه یې یوڅوک پیدا کړ او بیعت به یې ورسره وکړ، خو هغه د هماغه وخت خلک وو، هماغسې یې عِشق و، بیا الله تعالیٰ ﷻ همداسې مقامات هم ورپه برخه کړل. زمونږ په هرځای کې داسې صالح خلک پیدا کیږي چې تعلق ورسره وساتو، خودغفلت له امله په پنځو شپږو کلونوکې هم وخت نه پیدا کوو اونه له خپل پیر اومرشد سره رابطه ساتو.

## دحضرت مجددصاحب رحمة الله علیه لطیفه

حضرت مجددصاحب رحمة الله تعالی علیه ته یوڅوک داسې شکایت کوي چې دهر وخت کېږي وظیفه مې اخیستې ده اوزه یې تراوسه پورې په هیڅ اثر نه پوهېږم، دی مبارک ورته په خواب کې لیکي چې:

چشم بند، گوش بند، لب بند    گر نه دیدی سرِ حق بر من بخند

له گناهونو څخه سترګې بندې کړه ، غوږونه بند کړه،ژبه اوخوله بنده کړه، نوکه بیادې هم د الله تعالیٰ ﷻ اسرار ونه لیدل بیا راپورې وخانده.

زمونږ نظرونه چېرته دي؟ زمونږ څرنګه مجلسونه دي؟ څرنګه خبرې اورو؟ ددې ټولو اثر براهِ راست په زړه باندې وي. نوبیاهم وايو چې زه په وظیفه باندې نه پوهېږم

یو وخت کې حضرت ضیاء المشائخ صاحب قدس الله سره ته یوچا په خط کې دا شکایت لیکلی و چې: صاحب! ډېر وخت کېږي چې وظیفه مې اخیستې ده، خوبه دې دومره وخت کې زه په خپله وظیفه نه پوهېږم. ده مبارک ورته په ځواب کې ولیکل چې: (محبه! ډېر خوراک پرېږده، ډېر مجلس پرېږده، ډېر خوب پرېږده، ذکر ډېر کوه، دطریقت رنګ مه بدوه.

نواصل طریقت دې ته ویل کېږي، مونږ ټول همدا شکایت کوو، خو اصل ځای ته مو پام نه ده او دا سوچ نه کوو چې مونږ کړي څه دي؟ څومره کوښښ مو کړی ده؟

الله تعالی ﷻ مونږ ته امر کوي (فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ) په ولاړې، ناستې په ملاستې په ټولو وختونو کې خدای یادوئ! (وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا) خدای یادوئ خو ډېر یې یادوئ! دامونږ ته د خدای ﷻ اوامر دي ، حکمونه یې دي، نو مونږ کله وریاندې عمل کوو، په شواروز کې کله پنځه دقیقې وظیفه کړې یا نه کړې، بیاهم شکایت کوو چې وظیفې مې نه کېږي.

نو عرض داده چې تعلق له خپل شیخ سره ډېر ضروري دی، چې دیو چا څومره وس کېږي باید تعلق وساتي، کثرت د ذکر ضروري دی، چې باید سړی ذکر وکړي.

اودا خبره چې ذکر سړی له کتاب څخه باسي ، نه له کتاب څخه څوک باسي، مونږ تر کتاب کتلو دغه نور بېکاره اوفضول مجلسونه ډېر کوو، په دغو اوقاتو کې باید ذکر وکړو، دناستې، ولاړې، حتی د جنابت په حالت کې هم ذکر کېږي، اودس ورته شرط نه دی، نولږترلږه باید دا بېکاره وختونه په ذکر تېر کړو، بیاوګورئ چې په ذکر کې اثر پیدا کېږي او کنه؟

الحمد لله داسې ملګري شته چې یوه ورځ په بازار کې وګرځي بیایې په وظائفو کې فرق راغلی وي،ځکه خو هغه ماحول، محیط خراب دی، هغه په ده باندې اثر کوي، یواځې بازار ته په تللو باندې، نوداچې سړی ټوله ورځ دغسې په خراب مجلس کې تېره کړي، ټوله ورځ یې له دغسې ملګرو سره وي، بیابه نو ولې وظیفې نه خرابېږي.

## دبازارډوډۍ په نیکوخلکوهم اثر کوي

یوسړی دحضرت صاحب مبارک قدس سره په وخت کې ډېر جذب کېده، نوحضرت صاحب مبارک چاته وویل چې: د هوټل ډوډۍ ورکړئ! ده ورته وویل چې دهوټل ډوډۍ خو صاحب زه نه خورم، حضرت صاحب مبارک ورته وویل چې: ستا جذب به هم نه قرارېږي ، ځکه دهوټل په مړیه باندې د مسکینانو سترګې لګېدلې

وي، نوستا له پاره هيڅ ګناه نه ده، دا ډوډۍ چې هلته له تنور څخه راوځي او مسکين ورته ګوري اووس يې نه لري، دهغه له امله دغه اثر پکې پيداکيږي، چې د نېک انسان حالت ورسره بدليږي. زمونږ مجلسونه، محيط ټول په دغه لوري روان دی، مطالعې مو د نورو کتابونو وي، په اخبار هرڅوک پوهيږي، هرڅوک يې اخلي، راديو نيسي، اخبار ګوري، دنوروعقيدو اونورو کتابونو ورته معلومات وي، خو هيڅا هم دغه دطريقت دکتابونو مطالعې ته ملا ونه تړله، دطريقت کتابونه يې ونه کتل، د اولياء الله مبارکانو حالات يې ونه کتل، نوبيا څرنګه به يې په ذکر کې اثر پيدا شي.

څومره مو چې وس رسيږي د اولياء الله دواقعاتو او حالاتو کتابونه ګورئ! زمونږ داتجربه ده چې نفسِ د کتاب د اول مخ په خلاصولو سره دسړي قبض ختميږي، نودومره اثر پکې پيدا شي، نوخودبخود قبض له منځه ځي اوعشق اومحبت پيدا کيږي.

## داخبار په کتلو سره ږيره پرېښودل

يوه ډاکټر ماته قصه کوله چې: د(ضرب مؤمن) اخبار دا فائده وه چې ماډېر کوت، نود ږيرې فضائل مې پکې وليدل او ولوستل، نو ږيره مې پرېښوده، نوچې يواځې داخبار په کتلو باندې دومره ګټه ده ته ورسېده، نوداچې يوڅوک له نېکو خلکو سره علاقه ساتي، ناسته ولاړه ورسره ولري، کتابونه يې ګوري، نوبيابه څرنګه اثرنه پکې پيدا کيږي؟ بلکې خامخا به پکې پيدا کيږي.

وآخر دعوانا ان الحمد للہ رب العلمین

وصلی اللہ تعالی علی خیرخلقہ سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمد وعلی آلہ واصحابہ واتباعہ واہل بیتہ اجمعین



# (٤) مجلس

## د اولیاء الله تصرفات او استعدادونه

مولوي صاحب امیرګل چې د منبع العلوم په مدرسه کې سپین ږیری استاذ او د حضرت صاحب مبارک مرید و؛ هغه دا قصه کوله چې: په یووخت کې چې هغه وخت زه طالب وم، مولوي صاحب اسماعیل چې د بل کوم مرشد خلیفه و، زه لمانځه ته مخکې کړم، له لمانځه وروسته یې راته ویل چې: عجیبه ښه خاوره دې ده ، که کوښښ وکړې، ډېر کار به وکړې، یعنې د قابلیت په لحاظ باندې، نو د طالبانو حال ته چې سړی فکر وکړې بنیادي خاوره یې ډېره پاکه ده، نو په هغو کې دا صحبت هم اثر کوي، دا عشق او محبت هم موجود وي، له دې امله چې د صحابهٔ کرامو﷢ سینې ډېرې پاکې وې، نو د طریقت دغه نني رسم ورواج په هغه وخت کې بالکل شهرت نه درلود، ځکه چې دوی یواځې د رسول الله ﷺ د مجلس او صحبت له امله ورته صفایي حاصلېدله، نو دغسې اذکار لکه دا اوس چې په طریقت کې دي لکه: (لطائف نفي و اثبات او مراقبې) دغو ته د هغوی ضرورت نه وو، نو یواځې د رسول الله ﷺ د صحبت له امله د دوی کامله تزکیه کېدله، دغه شی له هغوی﷢ څخه په را

وروسته طبقاتو کې چې کله دنيوي علائق زياتبدل نوبيا مشائخ کرامو ددغه طريقت له پاره ځيني اصول ( اذکار او سبقونه ) غوره کړل، نو زه په هغه بنياد فکر کوم چې دعوامو اوطالبانو په دغه ژوندکې هم فرق دی، عوام الحمدلله مسلمانان دي، ډيري يې په اسلام کې سپينې کړي دي، تکليفونه يې تېر کړي دي، په جهاد اونورو عباداتو کې يې شرکت کړی دی، خوددوی عام محيط اوماحول چې ده، هغه په داسې محيط کې دی چې کدورات پکې ډېر وي، نودهغې له امله په دوی باندې ډېر زر اثر نه کېږي، ددوی متاثره کېدل ترهغه مجلسه پورې وي، نوکه په هغه مجلس کې ورته څه اثر پيدا شو، نوبيا ترېنه اوکه نه دهغو عامو مجلسونو له امله په دوی کې ډېر زر تحول راځي، اودا دطالبانو چې کومه زندګي ده ، هغه داسې ده چې ټول وخت يې له کتاب يا له استاد، يا له مطالعې، درس او تدريس سره وي، نوددوی عام ماحول صاف وي، بيا که لږ تکليف په ځان راولي په هغه لږ تکليف ددوی ډېر کار کېږي.

بيضاوي ، مشکوة او نورو کتابونو چې کوم تحقيق کړی دی،نودا وايي چې : د انسان له پاره ډېر خطرناک شی ګناوې دي، ترڅو چې يې له ګناوو څخه ځان نه وي په څنګ کړی نوانسان ترقي نه شي کولای، نو له دې امله طالبان پاک دي اوپه لږ تکليف سره يې کار جوړيږي.

## په اول بیعت سره د ولایت مقام ته رسیدل

حضرت نورالمشائخ قدس الله سره ته دهرات له لوري یو عالم راغی، په اوله ورځ یې چې بیعت ورسره وکړ، وظیفه یې واخیسته، د وظیفې په دغه اول حالت کې یې یوه چیغه له خولې څخه ووتله اولکه د اور لمبه رڼا یې خلکو ولیدله، په هغه ځای حضرت صاحب مبارک دستاربندي ورته وکړه اوخپل خلیفه یې وټاکه.

بیا سپین ږیروعلماءکرامو استفساراً پوښتنه وکړه چې زمونږ د ځالس کاله، دڅا شل کاله، د ڇا دېرش کاله، اته کاله، اودڇا پنځه کاله په طریقت کې تېر شوي دي اودخلافت اجازه ورته نه کېږي اود ده په دغه یوه مجلس کې کار وشو؟ نو حضرت صاحب مبارک ورته وویل چې: ده لرګي تیار ټول کړي وو، یواځې زما له طرفه د اور لګولو ضرورت و، یعنې وختونه یې بې ځایه نه وو تېر کړي، له ګناوو څخه یې ځان ساتلی و، ددې له امله چې دګناوو څخه یې ځان ساتلی و، یواځې چې دا لار خلاصه شوه، نو کار یې هم ژر خلاص شو.

## یو مرید په اوله وظیفه کې د انوارالمشائخ صاحب له قبر نه تلاوت واوریدل

حضرت قطب المشائخ دین محمد خلیفه صاحب رحمة الله علیه ماته قصه کوله چې یوه مرید ته مې په اوله ورځ وظیفه ورکړه، اوبیا مې د حضرت انوارالمشائخ فضل الدین خلیفه صاحب قدس الله سره زیارت ته ولیږه، کله چې بېرته راغی نوما ورڅخه وپوښتل ، ده راته وویل چې ما وظیفه کوله نو له قبرمبارک څخه په یوه خواږه آواز باندې داسې قرائت شروع شو چې ما داسې قرائت تراوسه پورې نه دی اوریدلی. نو خلیفه صاحب مبارک ویل چې په هغه ورځ یې ټول کار خلاص شو. نوزه چې په خپله دطالبانو دا حالت ګورم سره له دې چې دا دمخکنیو مشائخوکرامو حالات چې سړی واوري انسان ډېر مایوس شي خوبیاهم چې سړی هغه آثار ویني ، هغه محبت وي،نود سړي له پاره امید پیدا شي، چې په دغه لړ شي باندې هم خدای پاکﷻ ډېر کار کوي، بیاخود فتنو دور ده، آخر وخت ده. لکه حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: ( که چېرته وروستني خلک لس فیصده لاس له ګناهونو څخه ونیسي نوخدای پاکﷻ به دغو خلکو ته هغه کرامات وربه برخه کړي کوم یې چې صحابهٔ کرامو؆ ته ورکړي وو چې هغوی لس په لسو کې عمل کړی وو.

طالب ته چې لږ څه ورپیدا کېږي نویوښه خوب یې لیدلی وي، د
هغه دزړه تسکین خدای تعالیﷻ کوي، ځکه خدای تعالیﷻ په
خپل دین باندې غیرت کوي، چاچې په دین لږ لاس نیولی وي،
نوډېر زر اثر ورته ښکاره کېږي.

## دیوآغا صاحب قصه

یو آغا صاحب له ماسره په په وړه دوره کې د مشکوة شریف کې
درس وایه، تر نسب پورې مې خبره یاده کړه، بیاده راته ویل چې
ماته به په خپل نسب کې شک پیدا کېده چې مونږ آیا سیدان یو
اوکنه؟ ځکه چې په افغانستان کې سیدان له کومه راپیدا شول؟
نود طالبانو دتحریک په وخت کې مزارشریف ته تللی وم، نو هلته (
دحضرت عليؓ روضی مبارکې) ته ولاړم، نو هلته مې دځان سره
دا دعا وکړه چې خدایه پاکه ! که زه سید یم، نودلته ماته یو اثر
ښکاره کړې چې زما د زړه تسکین وشي، نوڅه سورتونه مې وویل،
وظیفه مې شروع کړه، د وظیفې په حالت کې کوټه جوړه شوه، کله
چې کوټه جوړه شوه، نو حضرت عليؓ، حضرت حسنؓ، حضرت
حسینؓ او حضرت فاطمة الزهرا رضی الله تعالی عنها راغلل،
نوزما د زړه تسکین وشو چې رښتیا مونږ سیدان یو، یعنې الله
تعالیﷻ دومره رحیم ذات ده چې دهغه مخلص بنده دزړه تسلي
اوتسکین یې دومره زرترزره وکړ، په دغې یوې دعا چې په هغه
پاک ځای کې یې وکړه، ځکه په ښکو ځایونوکې دعاوې ډېر زر
قبلیږي. اوداځکه چې د انبیاوو علیهم السلام او اولیاء کرامو

رحمهم الله تصرفات له مرګ نه وروسته ختمیږي نه بلکې زیاتیږي،
ځکه علائق بدني ختم شي، په هر شي باندې الله تعالی ﷻ ورته علم
ورکوي.

## دیوې سیدې کونډې سره د نه همدردي واقعه

د ساداتو مبارکانو یوه کونډه چې په کور کې یې ډېر فقر او غربت
وو، دا دیوه شتمن مسلمان کور ته ددې له پاره ورغله چې که څه
مرسته او کومک راسره وکړي، ماشومان خواران یې وږي وو،
د ماښام وخت وو، کله چې ورغله نو یې ورته وویل چې: زه سیده
کونډه یم، یتیمان بچیان راپاتې دي، د پالنې یې هېڅوک نشته،
که ته څه مرسته راسره وکړې، نو هغه مسلمان ورته وویل چې: ستا
سره ددې خبرې څه ثبوت او شجره شته چې ته سیده یې! دې کونډې
ورته وویل چې زما خوله سند ده، زه په خپله خوله اقرار کوم چې زه
سیده یم، نور ته له ما څخه څه سند غواړې، دې کمبخت مسلمان
ورته وویل چې: سیدان ډېر دي، په دې سیدانو پسې زه نه شم
رسېدای. دغه مبارکه سیده کونډه ډېر پرېشانې له امله له دې
ځای څخه نا امیده ووتله، او دیوه یهودي کور ته چې په دې علاقه
کې په سخاوت باندې مشهور و، ورغله، هغه ته یې پناه ورووړه،
هغه شپه ورکړه، د شپې دغه مالدار او شتمن مسلمان او دغه
یهودي دواړه په یوه کیفیت باندې خوب ویني، دا مالدار مسلمان
خوب ویني چې د قیامت ورځ او د حشر میدان جوړ ده، جنت ده،

اوپه دغه جنت کې يوه بنګلې ماڼۍ (بنګله) ولاړه ده، دې مسلمان له جناب محمد رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وکړه چې: حضورﷺ! دغه بنګله دچا ده؟ حضرت نبي کريمﷺ ورته وويل چې: دا ديوه مسلمان سړي ده، ده ورته وويل چې: زه هم مسلمان يم، که دابنګله ماته راکړې! حضرت نبي کريمﷺ ورته وويل چې: له تاسره ددې خبرې څه ثبوت او شجره ده چې ته مسلمان يې! ته څه دليل لرې؟ دغه شتمن او مالدار مسلمان ورته وايي چې زه په خپله خوله اقرار کوم چې زه مسلمان يم، بس همدا زما دليل دی. حضرت محمد رسول اللهﷺ ورته وويل چې: ستا به په ياد وي چې زما يوه لور درته راغلې وه، هغې درته په خپله خوله څوځو ځله داوويل چې زه سيده يم، تاولې دهغې خبره نه منله.

همدارنګه دغه يهودی په خپل کور کې همداسې خوب وينې، سم دلاسه راپورته شو، توله کورنۍ اوخپلخانه يې راپورته کړه، کلمه يې وويله اوټول په اسلام باندې مشرف شول، سهار دغه شتمن او مالدار مسلمان دهغه يهودی کورته راغی، او ورته وايي چې مابنام ستاسې کور ته يوه مېلمنه راغلې وه؟ هغوی ورته وويل چې: هو! راغلې وه، ده ورته وويل چې: راويې باسه، که له ماڅخه راضي اوخوشاله شي، نو څلور زره درهم به ورته ورکړم. هغه دکور څښتن چې تردې دمخه يهودی و، او ددې صحنې له ليدلو وروسته مسلمان شوی و؛ ورته وويل چې: (زه د جنت بنګله په څلور زره درهمه نه خرڅوم) ځکه ده هم هغه حالت او خوب په خپلو سترګو ليدلی و.

اوس دا دومره تېز تصرف ده، چې يواځې دده دنسب يوڅوک خلډ شو، هغه دی هلته براه راست د حضرت نبي کريمﷺ ورباندې پام و، هغه مسلمان ته يې هم هرڅه ورولیدل چې ارمان پرې وکړي اوکافر ته يې هم ورولیدل چې دهغه له پاره دنيکبختی اوداسلام راوړلو ذریعه شوه.

نوچې انسان د الله تعالیﷻ اوجناب حضرت نبي کريمﷺ شفقت او مهرباني ته وګوري همدارنګه د اولياء الله کرامو مينې او محبت ته چې سړی وګوري، که يوڅوک له چا سره په ښه نيت او اخلاص سره محبت وکړي ، تعلق ورسره وساتي، همدومره دهغه ورته زر پام وروګرځي، دده کار زر جوړېږي، دچا د کورنۍ چې څوک څومره عزت اومحبت اواحترام وساتي ديوچا له متعلقينو سره چې څوک دعزت او احترام معامله کوي هغه هم دغومره ورڅخه راضي او خوشاله وي.

## دحضرت مجدد الف ثانی (قدس الله سره) عجيبه واقعه

حضرت مجددصاحب قدس الله سره فرمايي چې: زه لا هلک وم چې پلار مې د (قادريه) طريقې خليفه و، يو وخت کې زه ډېر سخت ناروغ وم، شاه کمال کيتهلی قدس الله سره چې دقادريې طريقې يو پير و، په لار باندې تېرېده، نو پلار مې زه په غېږکې واخيستم او هغه ته يې وروستم، ترڅو مې دم کړي، شاه کمال کيتهلی رحمة الله عليه زه دم کړم اوخپلې لاړې يې په خوله کې راکړې، وروسته چې

بياده کار په نقشبنديه کې په مخ ولاړ، دستاربندي يې وشوه، نو ډېر وخت وروسته دی وايي چې دسهار په وخت کې په مراقبه ناست يم، دمراقبې په حالت کې د شا له لوري څوک راغلل او چوپانه ( چپن ) يې راواغوستله، سر مې چې راپورته کړ، د شاه کمال کيتهلی قدس الله سره لمسی ده، نوډېر په احترام ورپورته شوم اوسترې مشي مې ورسره وکړه، بيا مې ترې پوښتنه وکړه چې: دا چپن دڅه شي له پاره ده، مجدد صاحب قدس الله سره وايي چې: ده راته وويل چې دا چوپانه زما نيکه شاه کمال کيتهلی قدس الله سره له ماسره ايښې وه، چې د پيران پير صاحب رحمة الله عليه (حضرت شاه عبدالقادر جيلانی ) له خوا څخه ده، اودا يې راته ويلي و چې دا چپن به ته هغه چاته ورکوې چې زه يې بيا درته امر وکړم، اودا درې شپې کېږي چې دی ماته امر کوي چې دا چوپانه حضرت مجدد صاحب ته ورکړه، خوزما زړه نه پرې کېده، نن شپه يې په انتهايي تهديد سره راته غصه وکړه، نوزه مجبوره شوم اودا چوپانه مې تاته راوړه، حضرت مجدد صاحب قدس الله سره وايي چې دا چوپانه مې واغوسته او د خپلې خانقاه په لوري روان شوم او هلته په مراقبه کېناستم، د مراقبې په وخت کې راته دا فکر پيدا شو چې د اولياء کرامو هم عجيب تصرفات وي چې خِرقه مخکې وراغوندي اوکار يې وروسته خلاصوي، يعنې ما خو په قادريه سلسله کې کار نه دی کړی، نودقادريې طريقې چوپانه ماته مخکې راورسېده، اوکار به وروسته کېږي، مجدد صاحب قدس الله سره وايي چې: يواځې په همدې تصور سره زما له پلاره نيولې تر پيران

پیر صاحب پورې چې دقادریې سلسلې څومره اولیاء کرام وو ټول راحاضر شول اود قادریه طریقې چې څومره تصرفات اوفیوضات وو ټول زما سینې ته راداخل شول، په دغه حالت کې ماته دا فکر راپیداشو چې داڅه نادره ده چې زه دنقشبندیه طریقې یم اولاړم دقادریه په طرف، نوپه عین حالت کې دنقشیندیه طریقې داولیاء کرامو آن تر شاه نقشبند مبارک قدس الله سره روحانیات ټول راحاضر شول، شاه نقشبند صاحب او پیران پیر صاحب دواړه په یوه مرتبه کې سره ناست دی، وروسته د چشتیه طریقې په څه مناسبت باندې چې هغوی هم څه دم یا تعویذ راته راکړی و، هغه مشائخ مبارکان ټول راته حاضر شولو د سهروردیه طریقې حضرات هم حاضر شول، تردې پورې چې دغه معارضه اومقابله زما په هکله شروع شوه، څوک وایي چې دی زمونږ دطریقې دی ، دقادریه طریقې مبارکان وایي چې زمونږ دطریقې دی ځکه چې اول لاړې په خوله کې مونږ ورته ورکړي دي او اوس یې چوپانه هم زمونږ اغوستې ده، د نقشبندیه طریقې مبارکان وایي چې نه داسې نه ده، بلکې بیعت یې زمونږ په دې لار کې شوی دی، کمالات یې ټول په دغه لار کې واقع شوي دي، مجدد صاحب قدس الله سره وایي چې: دامنازعه د غرمې تر وخت پورې وه چې د جناب محمدرسول اللهﷺ روحانیت راحاضر شو، دڅلورو واړو طریقو مشائخو اختیار دهﷺ ته ورکړ، حضرت نبي کریمﷺ دا فیصله وکړه چې: دی که څه هم قابل او مستحق دڅلورو سره طریقو ده، مګر دده کار په نقشبندیه

کې مشهور دی، نوبه دې باندې فیصله وشوه. [ حضرت کِرام نقشبندیه \ صفحه \ ۲۱۹ ].

نوتاسې دا فکر وکړئ چې: دومره زیات تعلق و چې د طفولیت او وړوکتوب په وخت کې یې لاړې د قادریه طریقې ده ته ورکړې وې، دم یې ورته ورکړی و، دهمدې لارې چې څومره مشائخ وو ټول ورپسې متوجه وو ، نوچې دیوې لارې تعلق جوړ شوی وي له هغې نه ددوی دومره قوي تعلق او رابطه جوړیږي ،داچې سړی مخلص معتقد شي نوبیابه ولې دهغوی نظر په د: باندې نه وي؟

## له مرګه وروسته له مریدانو سره دحضراتوکراموشفقت

په یوه وخت کې حضرت نورالمشائخ (قدس الله سره) ته یوچا مبلمستیا وکړه، دی مبارک په هدیره باندې تېرېده، موټر یې ودراوه، اویوه قبرته څلور ساعته په مراقبه ناست و، کله یې چې سر راپورته کړ، نو یوه خلیفه صاحب ورته ووېل چې: صاحب! خلکو به ډېر انتظار کړی وي، ده مبارک ورته ووېل چې: ددغه قبرڅښتن یوه ورځ زمونږ په لنګر کې ډوډۍ خوړلې وه، زما مرید نه دی، کله چې مونږ په لار تېرېدو نودقبر په عذاب اخته و، نوزما غیرت دا نه منله چې زه دې ډوډۍ ته روان یم اوزما یو علاقمند دې په عذاب اخته وي، نوچې ترڅو اخلاص او اعتقاد وي ، معمولي تعلق وي،دهغو مشائخو کرامو غیرت دانبیاوو علیهم السلام غیرت ده،

چې دنبي په هکله آيت راځي ﴿اَلنَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ﴾. بیاهغه شفقت او غیرت ترمرګه ددوی مبارکانو هم نه هیریږي، په انسان پسې یې پام وي، خو داخبره ورسره شرط ده چې دوی ته به دې اعتقاد وي، له دوی سره به دې اخلاص وي، ځکه کله چې اعتقاد نه وي، نوخامخا به انکار وي اودمقابلې صورت به مخې ته راځي، نو چې مقابله راغله نوبیایې انسان ته فیض، برکت اوخیر نه رسیږي.

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین



# (۵) مجلس

## تَبَرُّك بِآثارِالصَالِحِيْن

### په کوم ځای کې چې کوم ولي وخت تېر کړي دهغه مقام ورته حاصلیږي

محترمو مسلمانانو ! د صحابهٔ کرامو﵃ تاریخ ته که خیر شو اوپه غور سره یې مطالعه کړو له هغې څخه ددوی له حضرت نبي کریم ﷺ سره اخلاص، مینه محبت اوعقیده له ورایه ځلیږي.

دصحابهٔ کرامو﵃ په حالاتوکې راځي چې: حضرت نبي کریم ﷺ به چې له خولې مبارکې څخه لاړې مبارکې توکولې حتی چې بلغم به یې توکول بیابه هم صحابهٔ کرامو﵃ لاسونه ورته نیول، بیابه یې په خپلو مخونو باندې هغه لاسونه تېرول.

په یوه روایت کې د حضرت نبي کریم ﷺ په هکله راځي چې کله به ده ﷺ اودس کاوه، نوصحابهٔ کرامو﵃ به لاسونه ورته نیولی وو، اوپه خپلو مخونو باندې به یې بیاهغه لاسونه راتېرول، که به دچا لاسونه ده ﷺ هغو اوبو ته و نه رسېدل نوهغوی به ددې نورو صحابهٔ کرامو﵃ دلاسونو لاندې خپل لاسونه ورمُښل ترڅو دحضرت نبي کریم ﷺ د اوداسه له اوبو څخه په یوه نه یوه طریقه برخه واخلي. نو اوس که په دې کې کته او برکت نه وای (څکه چې دشارع په حضور

کې خو د ناروا کار کېدل امکان نه لري ) حضرت نبي کریمﷺ شارع ده، هغهﷺ کله هم داسې نه دي کړي چې صحابهٔ کرامو﷢ دې ( العیاذبالله ) کوم ناروا عمل کړی وي اودی دې پرې چوپه خوله پاتې شوی وي، په دې خو زمونږ عقیده ده چې په ټولو انبیاووعلیهم السلام کې نفساني خواهشات اوغوښتنې نشته چې دخپل نفس دغوښتنې له امله دې دوی یو کار وکړي، داسې واقعې د حضرت نبي کریمﷺ په حضور کې څوڅو ځله تېرې شوي دي.

نوکه په دې کار کې خیر نه وای ، دغه کار دخیر اوبرکت ذریعه نه وای، نو صحابهٔ کرامو﷢ بیا ولې داسې عمل کاوه، نومعلومه ده چې په دې کې دوی مبارکانو ضرور یوڅه لیدلی وو، چې د ( صالحینو ) په آثارو یې تبرک ځان ته حاصلاوه.

## په حیواناتوکې دحضرت نبي کریمﷺ معجزه

حضرت نبي کریمﷺ ته یو سړی راغی اوداشکایت یې وکړ چې زمونږ یو اوښ یاغی او سرکشه شوی دی، اوس کار ورڅخه نه شو اخستلای، نو حضرت نبي کریمﷺ له یوڅوصحابهٔ کرامو﷢ سره هغه باغ ته ورروان شول په کوم باغ کې چې دغه اوښ و، په کوم کوهي چې یې دغه اوښ تړلی دی، نوچې حضرت نبي کریمﷺ د اوښ په لوري ور روان شو، نو داوښ ښتن ورته وویل چې: یارسول اللهﷺ دغه اوښ بالکل چورلټ لیونی شوی، هرڅوک چې ورنږدې شي نو خولې پرې لګوي، هسې نه چې تا، ې ته څه تکلیف در

ورسوي، حضرت نبي کريمﷺ ورته وويل چې: زه ورځم، کله چې حضرت نبي کريمﷺ ورغی نو اوښ يوه اوبل لوري ته وښوريده، سر يې په ځمکه وموښه او حضرت نبي کريمﷺ ته يې سر په سجده کېښود، نو ددې واقعې له ليدلو او تېرېدلو وروسته حضرت نبي کريمﷺ د اوښ څښتن ته وويل چې: دا اوښ په مونږ خرڅ کړه، هغه ورته وويل چې: زمونږ د کور دنفقې دغه يوه ذريعه ده، بل څه نه لرو، حضرت نبي کريمﷺ ورته وويل چې: اوښ ماته ددې شکايت وکړچې کار راباندې ډېر کوي اوپه نس مې بيا مور نه ساتي.

حضرت عمرﷺ څومره د اوچتې مرتبې اودڅه عجيبومناقب څښتن ده؟ نوهغهﷺ حضرت نبي کريمﷺ ته وايي چې: ستاسې دومره لوی شان ده چې حيوانات تاسې ته سجده کوي، نوکه مونږ ته اجازه راکړې مونږ به هم درته سجده وکړو، نوتاسې فکر وکړئ چې په دې خبره سره څومره نفساني خواهشات پوره کېږي؟ خوحضرت نبي کريمﷺ ورته وايي چې: که له خدای تعالیﷻ نه پرته بل چاته سجده روا او جائز وای نوما به ښځو ته امر کړی وای ترڅو خپلو مېړونو ته سجدې وکړي، ځکه دمېړه په ښځه باندې ډېر زيات حقوق دي، حضرت نبي کريمﷺ حضرت عمرﷺ ته ددې اجازه نه ورکوي، ترڅو دهﷺ ته سجده وکړي.

# په نباتاتوکې د حضرت نبي کریم ﷺ معجزه

یو صحابي ﷺ راغی حضرت نبي کریم ﷺ ته وایي چې : که تاسې یوه معجزه ښکاره کړئ ترڅو زما پوره یقین راشي اوتصدیق مې ښه کامل شي، حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایي چې: هغې ونې ته ورشه اودا ورته ووایه چې د خدای تعالی ﷻ رسول په تا باندې سلام وایي او غواړې دي، دغه صحابي ﷺ هغې ونې ته ورغی اودحضرت نبي کریم ﷺ سلام او پیغام یې ورته ورساوه، ونه په حرکت شوه، اوله څلورو طرفونو څخه یې ریښې راوختې او را روانه شوه، کله چې د حضرت نبي کریم ﷺ حضور ته راورسېده، نو سر یې په سجده کېښود، نودغه صحابي ﷺ وایي چې : بس ماته دامعجزه کافي ده، حضرت نبي کریم ﷺ بېرته ونې ته امر کوي ترڅو خپل ځای ته ولاړه شي، ونه بېرته ولاړه، همدغه صحابي ددې صحنې له لیدلو وروسته حضرت نبي کریم ﷺ ته وایي چې که ته ماته دا اجازه راکړې ترڅو زهِ هم تاسې ته سجده وکړم. خو حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایي چې د خدای تعالی ﷻ له ذات پرته بل چاته سجده نه ده روا.

په یوه روایت کې راغلي چې د حضرت نبي کریم ﷺ لاسونه او پښې یې ورښکل کړي دي، خو ممانعت یې نه دی کړی، ځکه چې دا جائز عمل ده، مګر د سجدې اجازه یې هیچاته هم نه ده کړې، هغه داوداسه اوبه چې صحابهٔ کرامو ﷺ به په ځان باندې مُبلې یو جائز عمل و، منعه یې ورڅخه نه ده کړې، خو چې کله دشریعت په خلاف

عمل و، بیایې له هیڅ سره هم تسامح نه دی کړی، کله چې دی ﷺ
په توله نړۍ (دنیا) کې یواځې و هم دحق اعلان او اظهار یې کړی
دی، بیایې چې کله ملګري پیدا شول بیایې هم دحق خبرې ملګرتیا
کړې ده.

نومطلب مې دا و چې په ځای کې هم برکت وي، په لباس کې هم
برکت پیدا کېږي، په پس خورده کې هم برکت وي، په مستعملو
اوبو کې هم برکت پیدا کېږي، په هر استعمال شوي شي کې برکت
پیدا کېږي، ځکه کتابونه لیکي چې: په کوم ځای باندې چې
دکومې مرتبې او مقام څښتن تېر شي اویا وخت پرې تېر کړي هغه
ځای په نسبت سره نورو ځایونو ته یوه مرتبه او مقام پیدا کوي، لکه
څرنګه چې دهغه شخص مقام دی.

هغه خاوره چې دحضرت محمدرسول اللهﷺ له مبارک وجود سره
نښتې ده، هغه خاوره تر بیت الله شریف هم بهتره ده، هغه تر عرش
عظیم هم بهتره ده، دمدینې منورې خاوره چې بابرکته اوپاکه ده
هغه له دې امله ده چې دحضرت نبي کریمﷺ سره یې نسبت ده،
څومره مقام چې درسول اللهﷺ ده په هغه خاوره کې یې هم هغه
حیثیت ایښی ده.

قرآن عظیم الشان ته بې اودسه لاس وروړل یو ناروا عمل ده،
ځکه په آیت شریف کې راځي ﴿لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ﴾ خو قرآن کریم
ته چې کوم کڼتې (پوښ) ورکړل شوی چې له دې مخکې یوه عامه
کته اوکاغذ و، هرڅوک یې په هر حالت کې استعمالولای

شي، خوکله چې دغه ګته له قرآن عظیم الشان سره ولګېږي نوبیادومره د احترام لائق شو لکه څومره چې قرآن عظیم الشان دی، بې اودسه لاس وروړل ورته نه دي جائز. اوس دغه کاغذ چې تردې مخکې دکاندار هرشی پکې خرڅولای شول خو کله چې له قرآن عظیم الشان سره ولګېده نوبیاخدای تعالیﷻ ورته دومره عظمت ورکړ چې بې اودسه به لاس نه وروړې.

دجوماتونو ځمکه چې مخکې جومات پرې جوړ نه و، هر رنګه تصرف پکې جائز و، بلکې بیت الخلاء هم پکې جوړېدای شوه، خوچې کله دغه ځمکه دجومات له پاره وقف شوه، دخدای تعالیﷻ دعبادت له پاره منتخب اوځانګړې شوه، نوبیا ترقیامته پورې دغه ځای دومره محترم شو چې که جومات ړنګ هم شي بیاهم له دغه ځای سره ادب په کار دی، فتاواوې لیکي چې: په دغه ځای باندې د جنب (په چا چې غسل فرض شوی وي) دهغه تېرېدل هم پرې ناروا دي، دګندګي اچول پرې ناروا دي، په دغه ځمکه باندې دحیضې او نفاسې تېرېدل ناروا دي. اوس دغه ځمکه له جومات څخه مخکې دهرشي د استعمال قابل وه، خو وروسته چې یې دجومات حکم پیدا کړ، نوبیادومره عظمت ورحاصل شو چې تر قیامته پورې بیاددې ځمکې احترام په خلکو لازم دی اوهیڅ رنګه تصرف پکې نه شي کولای، دا برکت دعبادت له امله پکې پیدا شو.

په اشخاصو کې چې هم برکت پیدا کېږي هغه هم ددغه عبادت له امله دی، خاوره چې جماد ده، مکلف نه ده، هغه فرش ده، حیوانات وربانديې ژوند کوي، خوچې دعبادت له پاره وقف شوه،

نو شرافت پکې پيداشو، انسان چې په ټولو زنده سرو کې اشرف المخلوقات دی، الله تعالی ﷻ فرمايي ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيٓ ءَادَمَ﴾ دغه اشرف المخلوقات بيا اشرف ترين دمخلوقاتو په عبادت سره ګرځي، ځکه الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ ٱللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ﴾ ځومره چې انسان ته عزت وريه برخه کېږي هغه په تقوی سره کېږي، نو په دغه انسان کې به بياځرنګه عزت نه پيدا کېږي، خاوره عزتمنه ګرځي، د بل چا دعبادت له وجې، چې بل څوک سجده ورباندې کوي، نو په خپله عابد چې په عبادت لګيا ده ، هغه ته به خدای تعالی ﷻ څومره مقام ورکوي، اوهغه مرتبه بيا ختميږي هم نه، نبي چې دحيات په حالت کې کوم مقام درلود تر قيامته پورې يې دنبوت مقام نه ختميږي، بلکې په قيامت کې هم نه ختميږي.

اوس يوڅوک چې د ولايت مقام ته ورسيږي اوولايت ته په دين سره رسيږي، په بې دينې څوک نه رسيږي، چې يو ځل دخدای ﷻ په دين باندې دخدای ﷻ د اولياوو څخه شو، ﴿إِنْ أَوْلِيَآؤُهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُتَّقُونَ﴾ دخدای پاک ﷻ دوستان نه دي مګر متقيان، دغه د دوستي پيغام بيا الله تعالی ﷻ نه ختموي. دا بيا له مرګه وروسته هغه قبر هم هغسې مقام پيدا کوي، ځکه دخدای ﷻ د دوست قبرده، د حضرت ابوايوب انصاری ﷺ ، امام بخاري، حضرت ابو موسی کاظم رحمهم الله په حالاتو کې راځي چې : دا خبره په تجربې سره ثابته ده چې ددوی قبرونه مستجاب الدعوات دي، هلته دعاوې قبليږي.

کله به چې باران نه کېده، نوخلکو به ویل چې درځئ دامام بخاري قبر ته، دحضرت ابوایوب رضي الله عنه قبر ته چې دعا وکړو، دابوموسی کاظم رحمه الله قبر ته درځئ چې ورشو دعا وکړو، دا دهغه وخت علماء دي چې دیارلس څوارلس سوه کاله مخکې تېر شوي دي، دغه د اوس وخت علماء نه دي.

دادهریوه قبر ته په ورتلو سره به یې اثر په دنیا کې ښکارېده، بارانونه به کېدل، ددې وجه داوه چې ددې خلکو مقام شته ،مقام یې ورک نه دی، په کوم ښک ځای کې چې عبادت وشي هغه عبادت مستجاب اوقبلېدونکی دی، په کعبه شریفه کې عبادت یو په یو لک دی،یوه وجه یې کتابونو دا لیکلې ده چې: په دغه کوم ځای چې طواف کېږي په دغه ځای کې اویا انبیاء کرام علیهم السلام ښخ دي، په منی شریف کې جومات ده، مسجد نمره ) ددې جومات په هکله ویل شوي دي چې : په دغه ځای کې اویاوو انبیاء کراموعلیهم السلام لمونځونه کړي دي، تر ننه پورې دغه ځای ته خلک ورځي او عبادت پکې کوي، که دمقام تبرک ختمېدای نو نن ورځ خو په هغه ځای کې انبیاء کرام علیهم السلام نشته، نو بیا خلک ولې هلته ورځي او لمونځونه کوي؟ نو معلومه شوه چې په هغه ځای کې آثار او برکات موجود وي. ځکه خلک هغه ځای ته د ورتلو کوښښ کوي.

دحضرت نبي کریم ﷺ د مقام او مرتبې په هکله دقرآن کریم صریح آیت ده چې دمنافقینو په حق کې راغي ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ

جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا﴾ [سورة النساء] معنا داچې که چېرې دوی له ګناه او بدعمل کولو وروسته پښېمانتيا ښکاره کړې وای، اللهﷻ او رسول اللهﷺ ته يې رجوع کړې وای اودوی ته پيغمبرﷺ مغفرت غوښتی نودوی به الله تعالی په داسې حال کې موندلای وای چې ددوی توبه به يې قبلوله اورحم به يې پرې کړی و.

## حضرت نبي کريمﷺ له رحلت نه وروسته هم د خپل امت د ښښنې غوښتنه کوي

يو اعرابي ( کوچی ) په دې نيت له کوره څخه راووت چې زه به رسول اللهﷺ ته دخپلو ګناهونو حالت بيان کړم،ترڅو دیﷺ زما له پاره له اللهﷻ څخه مغفرت وغواړي، نوخدای پاک به مې توبه قبوله کړي، کله چې دی مدينې منورې ته راغی نو حضرت نبي کريمﷺ له دنيا څخه رحلت کړی و، نودی د حضرت نبي کريمﷺ قبر مبارک ته ورغی او ورته وايي چې: ای د الله رسولهﷺ! ما ډېر ګناهونه کړي دي او اوس له خپلو ګناهونو څخه توبه ګار يم، اوداهم راته معلومه ده چې الله تعالی فرمايلي دي چې که ماته څوک په اخلاص توبه وباسي نو يې توبه قبلوم، نو دده ﷺ په مبارک قبر باندې يې ځان وروغورځاوه، اوخاورې يې په ځان شيندلې، چې زه ډېر ګناهکار يم، ستا قبر ته راغلی يم، که ته مې شفاعت وکړې ! نو له قبر څخه

حضرت نبي کریمﷺ ورته آواز کوي چې: ( قد غفرت ) تاته مغفرت وشو.

نوهغه دده چې کوم مقام او مرتبه دژوند په حالت کې وه، پس له مرګه هم هغه مرتبه خدای تعالیﷻ ورځخه نه ده اخیستې.

## حضرت نبي کریمﷺ له روضې مبارکې نه خپل لمسي ته دسلام جواب ورکول

دحضرت مولانا حسین احمد مدني رحمه الله په هکله کتابونه لیکي چې دی وایي: زه چې کله مدینې منورې ته ورسېدم، ملګري راسره وو، ماچې کله دحضرت نبي کریمﷺ مبارکې روضې ته سلام واچاوه، نو له هغه لوري ماته په اوچت غږ ځواب راکړ شو چې: ( وعلیک السلام یا بُنَی: ) ای بچیه! په تا دې سلام وي، حضرت نبي کریمﷺ خپل خلک پېژني.

داسې واقعې زمونږ په مشائخو کرامو کې هم تېرې شوي دي، چې د ډېر ادب له امله نږدې ورنه غلو، او په برنډه کې به ناست وو، نود روضې مبارکې له لوري رابانديې غږ وشو چې راځئ زما طرف ته! دا د حضرت نبي کریمﷺ مقام الله تعالیﷻ ورځخه پس له مرګه نه ده اخیستی. د ولي مقام هم پس له مرګه نه ورکېږي، دچاچې په ژوندکې کوم مقام او حیثیت وي پس له مرګ څخه یې تصرفات زیاتیږي او کمیږي نه.

## مرشدين خپل مريدان هيڅکله نه هيروي

دحضرت انوارالمشائخ (خليفه صاحب فضل الدين قدس الله سره ) يومُريد قصه کوله چي: دده له رحلت څخه وروسته څه ډېره موده زه ددوی مدرسي ته نه وم تللی. کله چي بيا ورغلم او دمرحوم خليفه صاحب مبارک قبر ته کښناستم نو په وظيفه کي ويده شوم او خوب وينم چي دی مبارک په کوټه کي ناست ده او زه ور روان يم، کله چي په دروازه ورننوتم نوپه خپل نوم يې ياد کړم چي: نورالرحمانه ! په خير راغلې او ستړی مه شې! ما ورته وويل چي: خليفه صاحب ! زه خو داډېر وخت نه وم راغلی، ما خوداسي فکر کاوه چي تاسي به زما نوم هېر کړی وي، ده راته وويل چي په دنياکي خو لاڅه کوي په آخرت کي دي هم والله العظيم کي هېر کړم، تا خو لاډېر ډېر ده چي مور اوپلار دي هم نه هېروم. ګوری؛ عزتمنو ! دغه اصلي مقام ده ، دا هېڅکله هم نه ورک کېږي.

زمونږ ځيني ملګري چي دفراست خاوندان دي، ماته حالات بيانوي چي کله مونږ د مرحوم انوارالمشائخ مبارک قبر ته ورشو نوله قبر څخه يې داسي خوشبويي راپورته کېږي چي مونږ دهغې حِس په دنياکي نه شو کولای. دا ولې ؟ ځکه چي هغه مقام يې ختم نه ده، هغه په خپل حال پاتې ده، بلکي ترهغې هم لازيات ده. تصرفات يې په خپل حال بلکي ترهغې لازيات دي. د هر يو ولی الله

چې کوم مقام وي هغه نه ختميږي اوځوک چې يو وار د الله تعالیٰ ﷻ ولي اودوست شو نوبياپه الله تعالیٰ ﷻ دومره ګران وي چې که څوک بيا ورسره دمقابلې فکر اوسوچ کوي نو الله تعالیٰ ﷻ له دغه انسان سره د جنګ جګړې اعلان کوي ( مَنْ عَادَ لِیْ وَلِيًا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالحَرْبِ ) چاچې زما له دوست سره دښمني کوله ، له داسې انسان سره زما له لوري د جنګ اعلان دی.

ګورئ! دی بيا خدای تعالیٰ ﷻ ته دومره محبوب شي چې الله تعالیٰ ﷻ بيا دهغه له لوري دجنګ اعلان کوي اودده په ځورولو الله تعالیٰ ﷻ خفه کېږي.

الله تعالیٰ ﷻ فرمايي چې: که ماته بنده رانږدې شي زما په لاره روان شي، زما د اوامرو او نواهيو پوره پوره اتباع وکړي، نوتردې حده ماته رانږدې شي چې زه بيادده سترګې شم چې په ما باندې ګوري، زه دده لاسونه شم چې څه پرې رانيسي، زه دده پښې شم چې په هغې باندې مزلونه وکړي.

د ډېرو خلکو واقعاتو ته چې سړی وګوري چې که يوځل الله تعالیٰ ﷻ په دوستي نيولی وي نوبيا يې انبياء کرام عليهم السلام دهغو خلکو په عزت کولو باندې مامورکړي دي.

## د بني اسرائیلو د یو بدمعاش قصه

د بني اسرائیلو په هکله یوه مشهوره واقعه ده چې: په یوه علاقه کې یو مشهور فاسق او بدعمله انسان و، تردې اندازې یې سرکشي زیاته وه چې ددغې سیمې خلک ورڅخه په عذاب شول، مقابله یې ورسره نه شوای کړای، خلکو دده له ضرر څخه دخلاصون په هیله الله تعالیٰ ﷻ ته زارۍ شروع کړې چې دده څخه مو خلاص کړه، حضرت موسیٰ ؑ ته الله تعالیٰ ﷻ امر وکړ چې: ورشه اودغه فاسق له دې ښار څخه وباسه ! موسیٰ ؑ له ښار څخه ورپسې اویوه کلي ته ولاړ، بیا الله تعالیٰ ﷻ موسیٰ ؑ ته امر وکړ چې له هغه کلي څخه یې هم وباسه! له کلي څخه یې هم وایسته ترڅو دغه کلیوال ورڅخه په عذاب نه شي، ولاړ اود صحرا مخه یې ونیوله، څه موده وروسته دغه فاسق شخص مریض شو، مرض یې وار په وار پسې سختیده، تردې چې د مرګ حالت ته راورسیده. نوپه دې حالت کې یې د الله تعالیٰ ﷻ لوري ته پام شو اوپه خپلو ګناهونو یې پښېماتیا ښکاره کړه، له ډېره غمه په ژړا شو، په ژړا کې وایي چې: که اوس مې مور وای په مابه یې رحم کړی وای، زما په دغه ذلت به یې ژړا کوله، که زما پلار وای نوڅه مرسته به یې راسره کړې وای، ټول تدبیر او انتظام به یې په لاس کې و، که مې ښځه وای نوزما په بېلتون به یې ژړل اوکه مې خپل اولاد وای نو زما په جنازه به یې ژړلي و اودا دعا به یې کړې وه چې: ای خدایه!

زمونږ دغه ضعیف او ګنهکار پلار ته چې له ښاره یې کلي او له کلي نه یې بېدیا او صحرا ته خلکو وشاړه او اوس د نااميدي په حالت کې د آخرت په لوري روان دی، نو خدایه! ته پرې رحم وکړې، کاشکې مې داسې اولاد وای، داخبرې کوي او ژاړي.

له دې وروسته ته الله تعالیٰﷻ ته زاری کوي چې یا الله! چې په دنیاکې خو دې زما زړه دخپلو خپلوانو په جداوالي او فراقت باندې وسوځواه، نو ای خدایه! په آخرت کې مې دخپلو ګناهونو له امله د دوزخ په اور نور مه سوځوه! ای خدایه! زه خو دې په دنیا کې له خپلو خپلوانو څخه جلا کړم خو ته مې په آخرت کې له خپل رحمت څخه مه بېلوه!

راوي وايي چې په دې حالت کې د الله تعالیٰﷻ رحمت په ځوښ راغی اود جنت حورو ته یې امر وکړ چې یوه ورته د مور او بله ورته د ښځې په بڼه ورشئ او غلمانو ته یې حکم وکړ چې: تاسې ورته د اولاد په شکل ورشئ! او دوه وو ملائکو ته یې حکم وکړ چې تاسې دده د پلار په شکل کې ورته ورشئ اودده په مرګ وژاړئ.

دلته دده د نزعې حالت ده او څه ګوري چې سر ته یې مور او ښځه ناستې دي او ورته ژاړي، پلار او اولادونه یې ناست دي او پرې ژاړي. ددې صحنې له لیدلو وروسته یې ساه وخته. د ساه له وتلو وروسته الله تعالیٰﷻ موسی ؑ ته امر کوي چې په فلانۍ دښته کې زما یو دوست پروت ده، ورشه اود جنازې، کفن دفن مراسم یې په ځای کړه. کله چې حضرت موسی ؑ ورغی او ګوري چې

داخو هغه فاسق ده چې مونږ له ښاره کلي ته اوبيا مو له کلي څخه صحرا ته راووېست نو حيران شو چې خدايه داخو هغه څوک ده چې تا يې ماته له ښاره د اېستلو امر کړی و، نن په دښته کې پروت ده اود جنت حورې ، غلمان او ملائکې دې ورته په ژړا کولو ماموري کړي دي اوماته دې هم امر وکړ چې زما د دوست د کفن دفن او جنازې انتظام وکړه ! الله تعالیٰ ﷻ ورته وايي چې: د غريبي، مسافري او مرض له امله ، اوپه خپلو ګناهونو د پښېمانتيا له امله يې توبه واېسته ،ماته يې رجوع وکړه، نوپه دې اساس مې دی له خپلو اولياوو څخه وشمېره.

ګورئ ! د وخت فاسق ده، خو چې کله يې توبه واېسته ، الله تعالیٰ ﷻ ته يې رجوع وکړه نوبيا د الله تعالیٰ له خاصو دوستانو څخه حساب شو، دومره په خدای تعالیٰ ﷻ ګران شو چې خپل نازولي پيغمبر ته امر کوي چې ورشه ! او زما د دوست دجنازې اوکفن دفن دانتظام چارې سمبال کړه. دجنت حورې ، غلمان اوملائکو ته حکم کوي چې ورشئ اوپرې وژاړئ ترڅو يې دزنکدن په حالت کې تسلي وشي.

نوچې ديوچا په توبه الله تعالیٰ ﷻ دهغه له ټولو تقصيراتو ورتېرېږي، دخپلو اولياوو له جملې څخه يې ګرځوي ، نوچې يوڅوک شپېته او اويا کاله د الله تعالیٰ په دوستي او بندګي کې تېر کړي ، دخدای تعالیٰ ﷻ له دوستانو سره وخت تېر کړي نودهغه به څومره درجه او مرتبه وي؟ نو عزتمنوخبره مې دا کوله چې دا مقامات ختمېږي نه ، دهغوی ځايونه قابل احترام دي، اولياءالله د

ځمکې په سر باندې داسې عزتمن دي لکه د آسمان ستوري، دوی په ځمکه دغسې ځلیږي، په جنت کې یې هم دغسې مقامات او مرتبې دي.

لاندې طبقې د مسلمانانو به داولیاؤ الله مقامات داسې ویني لکه مونږ چې له ځمکې نه آسمان ته ګورو او د آسمان ستوري وینو. دوی چې په جنت کې په هوا یوطرف اوبل طرف ته ګرځي ددوی انوار به په جنت کې رڼا کوي، په لاندې طبقې د مسلمانانو به یې سیوری پرېوځي اوګوري به چې په هوا باندې یو نوراني مخلوق روان دی. له دوی نه به نور خوتیږي.

نوددوی مقامات دغسې د ترقي په حالت کې دي، اوڅوک چې دوی ته په عزت قائل وي ، په زړه کې یې احترام کوي، نو دغسې به دهغوی هم په دوی باندې نظر وي.

## خپل مریدان خپل شیخ ته پیش کول

حضرت پیران پیر صاحب سید دہ، دده یو خلیفه په بل ځای کې اوسیږي، هغه هم سید دہ، هغه خپلو مریدانو ته وایي چې: درځئ د حضرت پیران پیر صاحب لیدلو ته ورشو، مریدان یې ورته وایي چې مونږ ته ته کافي یې ! ته مو پیر او استاد یې ! نوهغه ته د ورتلو څه ضرورت دہ؟ دی ورته وایي چې: نه ! دهغه مقام ځان ته دہ، درځئ چې ورشو ! کله چې دوی ور روان شول نود پیران پیر صاحب

له کور څخه دبېر لرې حضرت پیران پیر صاحب خپلو مریدانو ته امر
کړی دی چې: زما په غاړه کې پړی واچوئ او ما په څلورې دده طرف
ته ور روان کړئ! کله چې په دښته کې یو بل ته په مخه ورغلل، نو د
پیران پیر صاحب دغه خلیفه سمدلاسه له زمري څخه کوز شو، څکه
دی په زمري او مریدان یې په آسونو سپاره وو، له کوزېدو سره سم
یې په پیران پیر صاحب باندې غږ وکړ چې تا ولې داسې کړي دي؟

نو پیران پیر صاحب ورته دده مقام ذکر کوي او ورته وایي چې:
کله ته له خپل کور څخه را روان شوې، نو حضرت بي بي فاطمه
رضی الله عنها او حضراتو حسنینو ﷺ په تا باندې پام و، نودهغوی
مبارکانو د نظر له امله زه ستا مخې ته په دغه حالت کې راووتم.

نو گورئ د پیران پیر صاحب مرتبه اومقام وگورئ چې هغه ۔
دخومره اوچتې مرتبې او مقام شخصیت ده. خودی دلته خپل
شاگرد اوخپل خلیفه ته له کوره د باندې آن صحرا ته پړی په غاړه په
څلورې ولې راوځي له هغه سره د حضرت نبي کریم ﷺ د نسب
احترام په زړه کې و. په آغاصاحبانو کې دا تاثیر ولې موجود دی، د
انبیاوو علیهم السلام د نسبت له وجې نه. د اولیاء الله کرامو په
نسبونو کې ولې تاثیر دی، څکه چې دهغو مخکنیو اسلافو نظر
ورپسې وي. که دوی مړه هم دي خو نظر یې مړ نه دی. یعنې مطلب
داده چې دوی ته حقیقي حیات ثابت دی. نوپه کوم ځای کې چې
دوی اوسېدلي وي هغه ځای به تر قیامته پورې په انوارو باندې
منّور وي، هغه ځای نه خالي کېږي،هغه ځای ته چې سړی څومره
احترام ولري له هغه ځای نه دغومره مقام ورته حاصلېږي.

په یوه وخت کې یو خلیفه صاحب راغلی و نوما دخپل قصور اظهار ورته وکړ چې ماته دحضرت انوارالمشائخ صاحب په ژوند کې دهغه قدر معلوم نه و، نومونږ دده هیڅ ادب او خدمت نه دی کړی، په کوم وخت کې چې موقع او وخت و نومونږ له هغه وخت څخه استفاده ونه کړه اودغه دی اوس یې ارمان کوو، نوده راته وویل چې: اوس نو کله لرې ده، داسې خو نه ده چې خلیفه صاحب مبارک له دنیا څخه ولاړ اوتاثیرات یې هم نشته، دخلیفه صاحب قبر ته چې څوک په احترام ور روان شي زما دې په خدای قسم وي چې هغه اثر پکې پیدا کېږي. کوم خوند او لذت چې دده په مجلس کې هغه ولې اوس هم په دې مجلس کې موجود ده؟ زمونږ په شان دعاجزو خلکو چې تراوسه په خپله وظیفه هم نه پوهېږو زمونږ په دې خبرو کې ولې دومره تاثیر پیدا کېږي ځکه چې دا دهغو بزرگانو نظر ده. دهغوی شفقت ده، دا ددوی لورینه ده چې په مونږ یې لري اومونږ د دوی لاس نیولی دی اودوی ته مونسبت کېږي.

## دحضرت نورالمشائخ (قدس الله سره ) کرامت

مونږ ( نکې ) ته تللي وو اوله حضرت قطب المشائخ ( خلیفه صاحب دین محمد ) سره ګرځېدو ،محمد جمال مولوي صاحب هم راسره و، یو کلي دیوه نفر کور ته ولاړو، هغه راته ویل چې: زه به مو هغې کوټې ته ورولم چې حضرت صاحب نورالمشائخ او حضرت

صاحب ضیاء المشائخ دواړه راغلي وو او زمونږ په کور کې یې دننه موږدی تک وهلی و، چې په هغه کې به مونږ د هلکانو ځانګو اچوله چې خدای ﷻ یې له مرضونو نه وساتي. نوکله چې هلته ورغلو او بیرته مهمانخانې ته راغلو نودلته یې بیادغه مجلس شروع کړچې کله به حضرت صاحب او رئیس صاحب مبارکان دلته راغلل نو خلکو به یې ډېر احترام کاوه، مجلس دوام وکړ، نود قطب المشائخ صاحب له خولې نه بې اختیاره وویل شول چې: دا اوس چې زه راتلم مخکې حضرت صاحب روان و، اوس چې دلته راتلم حضرت صاحب موجود و، هغه کوم مقام یې چې و هغه نه دی ورک شوی.

## دحضرت شیخ المشائخ عنایت الله (کستهم) خلیفه صاحب کرامت

زه د (کستهم) خلیفه صاحب مبارک ته کله نه وم ورغلی، یوځل ورغلم نو خبر شوم چې دی مبارک حج ته تللی دی، نو زه لږ څه خفه شوم، چې کاشکې مې لیدلی وای، زه ربښتیا درته وایم چې کله په فلانکوچ کې سپور شوم داسې کیفیت راته پیدا شو چې په ډېر وخت کې مې نه وو لیدلی. هغه خپل اثرات ښکاره کړل چې که زه نه یم هم ځای مې خالي نه دی. نوچې څومره مو له وسه پورې وي ادب کوئ.

نو غرض داچې په هرشي کې اثر د دين له امله پيدا کېږي او دين هېڅکله هم نه ختمېږي. دخداى ﷻ د دين اعزاز نه په دنيا اونه هم په آخرت کې ختمېږي. داچې په قيامت کې څوک د څوارلسم دسپوږمۍ په شکل راپورته کېږي ولې ؟ څکه چې په دنيا کې ډېر په اخلاص د الله تعالى ﷻ عبادت کړى دى.

په يوه روايت کې راځي حضرت نبي کريم ﷺ فرمايي: ( کله چې جنتيان جنت ته داخل شي نو د نور ممبرونه ورته جوړ شي، نو جنتيان به وايي چې په دنياکې له مونږ سره يوه وعده شوې وه مونږ دهغې وعدې په انتظار يو اوهغه داچې د خداى ﷻ ديدار به څه وخت زمونږ په نصيب شي ؟ نوالله تعالى ﷻ به ملائکو ته امر وکړي چې حجاب پورته کړئ ، ملائکې به ورته وايي چې: يا الله ﷻ په دې خلکو کې خو داسې خلک هم شته چې په دنياکې يې ګناهونه هم کړي دي، هغوى کله ستا دديدار لائق دي؟ نو الله تعالى ﷻ به ورته وايي چې: دا هغه ذاکرين دي چې په ذکر کې به يې ژړل.

څکه که دخداى ﷻ له وېرې دمچ د سر په اندازه هم له کومې سترګې څخه اوښکه توېه شي نو بياهغه مخ په دوزخ باندې حرام ده يعنې دوزخ يې نه شي سوځولاى، نوداچې يو ساعت سړى په اخلاص وژاړي نوبيادې عواقب په آخرت کې ډېر ښه دي، د آخرت ژوند ورباندې برابرېږي. نوچې دې ته موږ ام وي چې په وظيفه، ختم اوژړا کې مو دخداى ﷻ رضا مطلب وي نوبيابه اثر کوي، څومره اثر چې په دنياکې پيدا کوي له هغې نه زيات اثر به يې په آخرت کې هم وي انشاء الله.

وآخر دعوانا ان الحمد للہ رب العلمین

وصلی اللہ تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واهل بیته اجمعین





# (٦) مجلس

## د جذب ثبوت او د صبر واقعات

اَللّٰهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتٰبًا مُّتَشٰبِهًا مَّثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِي بِهِ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴿٢٣﴾

[سورة الزمر]

الله تعالی ﷻ دقرآن کریم صفت داسې ذکر کوي چې: ښائسته خبره يې نازله کړې ده او مضامين يې يوله بل سره متاشبه او مکرر دي، اثر يې داده چې ددغو آياتونو په اورېدلو سره کوم خلک چې له الله تعالی څخه وېرېږي نو دوی چې د عذاب آياتونه واوري نو بدنونه يې ځيږه شي ، پوستکي يې ځيږه شي او بياچې کله هغه آياتونه واوري چې په هغو کې د مسلمانانو له پاره انعامات ذکر شوي دي نو زړونه يې مطمئن اوبه آرام او پوستکي يې بېرته نرم شي.

له دې آيت څخه د جذب ثبوت کېږي.

داچې د قرآن کريم په اورېدلو کې يوڅاته جذب پېښيږي دغه جذب شته او کنه؟

نو تفسیر مظهري / ۸ جلد/ ۲۰۸ مخ / سورة الزمر کې علامه بغوی (صاحب المصابیح) په خپل تفسیر کې لیکي چې: داسې صوفیان کرام چې د آیاتونو د اورېدلو په اثر په دوی باندې بې هوښي راځي نوددې خلکو په هکله دی خپله رایه داسې بیانوي: (دغه خلک چې دقرآن کریم د اورېدلو له امله په دوی باندې بې هوښي راځي دا ددوی کمال نه ده، بلکې بدعت ده، ځکه دا وېره ده چې شیطان دې په ده باندې دا اثر کړی وي. د صحابهٔ کرامو ﷺ او مسلمانانو حال الله تعالی ﷻ داسې بیان کړی دی چې پوستکي یې څېره کېږي او بېرته نرمیږي.

حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ وایي چې ما د خپلې آنا (نیا) حضرت اسماء رضی الله عنها بنت سیدنا ابی بکرالصدیق[1] ﷺ نه پوښتنه وکړه چې: کله به صحابهٔ کرامو ﷺ قرآن کریم اورېده نوددوی به څه کیفیت او حالت وو؟ نو دې مبارکې خپل لمسي ته وویل چې: دصحابهٔ کرامو ﷺ به داسې کیفیت او حالت وو چې له سترګو نه به یې اوښکې بهېدې، دعذاب د آیاتونو د اورېدلو له امله به یې بدنونه څېره کېدل اوچې کله به یې بیاد رحمت آیاتونه واورېدل نوزړونه به یې بېرته په قراره او ارام شول. دې ﷺ وایي چې ما خپلې آنا ته وویل چې: دلته خو ځینې داسې خلک هم شته چې د آیاتونو د اورېدلو له وجهې نه بې هوښي پرې راځي. نو دې مبارکې وویل

---

[1] حضرت اسماء رضی الله عنها د حضرت نبي کریم ﷺ خوښینه هم ده، ځکه دحضرت عائشې رضی الله عنها خور ده.

چې: (اعوذبالله من الشيطن الرجيم) [زه په خدای سره پناه غواړم له شره شوي شيطان څخه].

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په عراق کې روان ده، په يوه ځای کې خلک په چا باندې راټول دي، ده وويل چې داڅه پېښه ده؟ هغو ورته وويل چې: دلته يوسړی ده کله چې قرآن کريم واوري اوياهم دخدای تعالی ﷻ د ذکر په مجلس کې ورګډ شي نوپه ده باندې دخدای تعالی ﷻ د وېرې له امله بې هوښي راځي. حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ورته وويل چې: (اِنَا نَخشَ اللهَ ولاَ نَسقُطُ) مونږ له خدای څخه وېرېږو خو غورځېږو نه. دا شيطان دده خېټې ته ننوتلی ده، داسې جذب نشته چې په هغه کې بې هوښي وي، څوک ولوېږي او بې اختياره شي.

مګر بل طرف ته چې څوک نورو دلائلو ته متوجه شي نو له هغو څخه معلومېږي چې جذب شته.

په ايت شريف کې راځي (حَتّىٰٓ إِذَا فُزِّعَ عَن قُلُوبِهِمۡ قَالُوا۟ مَاذَا قَالَ رَبُّكُمۡۖ قَالُوا۟ ٱلۡحَقَّۖ) اوس دا دملائکو حالت ده، چې کله الله تعالی ﷻ د وحيې کولو اراده وکړي نودی په خپله بلاکيفه کلام وکړي، دالله تعالی ﷻ دکلام له اورېدلوسره آسمان او عرش عظيم په حرکت کې راشي اوټولې ملائکې بې هوښه شي، لومړنۍ ملائکه چې په هوښ کې راځي نودا نورې ملائکې ورڅخه پوښتنه وکړي چې خدای پاک ﷻ څه وويل ؟ دی ورته وايي چې حق يې وويل، دا فيصله يې وکړه.

نو اوس هغه دی چې په ملائکو باندې د الله تعالی ﷻ دکلام د اوریدلو له امله بې هوښي راغله.

حضرت موسی علیه السلام له الله تعالی څخه د لیدلو هیله کوي، چې ای خدایه! که ماته خپل دیدار راپه برخه کړې! الله تعالی ﷻ ورته وایي چې ته ما نشې لیدای! خوبیابه هم زه په غره باندې یوه تجلی وکړم نو که هغه غر په خپله ځای باندې تم شو نوته مې هم بیا لیدلی شې.

(فَلَمَّا تَجَلَّى رَبُّهُ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا وَخَرَّ مُوسَى صَعِقًا) کله چې الله تعالی غره ته تجلی وکړه نو غرټوټه ټوټه شو او حضرت موسی علیه السلام بې هوښه ولوېده.

اوس له دې تفصیل څخه وروسته دوه قسمه خبرې څرګندې شوې:

۱ـ د امام بغوی چې دحضرت اسماء اوحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه په قول باندې دلیل نیسي. اووایي چې داسې څه حالات نشته چې په سړي به بې هوښي راځي. او هلته له قرآن کریم څخه معلومیږي چې په انسان ببهوښي راځي، په پیغمبر اوملائکو علیهم السلام باندې بې هوښي راغلې.

دحضرت نبي کریم ﷺ په شان کې حضرت ام المؤمنین عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمایي چې: کله به په ده ﷺ باندې وحیې نازله شوه نوله داسې کیفیت سره به مخ شو چې په یخ ژمي کې به دده ﷺ له مبارک بدن څخه خولې روانې وې.

نو دغو دواړو طرفونوته چې سړی وګوري نو قول فیصل او حق خبره داده چې د قرآن کریم د ویلو په وخت کې برکات او انوار زیاتیږي ، دخدای تعالیﷻ د ذکر په وخت کې هم انوار زیاتیږي ،نواوس چې برکات زیاتیږي نود خلکو په احوالو او استعدادونو کې ډېر زیات توپیر او فرق ده، انسان اوملائکو ته چې وګورو نود انسان استعداد له ملائکې څخه زیات ده، څکه خدای تعالیﷻ دخپل خلافت له پاره بنی آدم مختار کړ ﴿إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ انسان یې خپل نائب اوخلیفه ټاکلی دی، نه ملائکه. ﴿إِنِّي أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ په هغو مقاماتو چې په انسان کې دي زه پرې پوهېږم تاسې علم پرې نه لرئ. نوملائکې چې هر وخت الهي کلام واوري دوی بې هوښه کېږي ، د انسان استعداد ترهغوی لوړ دی. حتی تر غرونو او آسمانونو د انسان استعداد لوړ ده. څکه الله تعالیﷻ فرمایي چې ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ﴾ نود انسان استعداد په مخلوقاتو کې ترهرڅه لوړ ده، آسمان چې وحیې واوري نوپه حرکت راځي، غر نه چې یوه تجلي وشوه نو ټوټه ټوټه شو، مګر موسیؑ ټوټې ټوټې نه شو، یواځې بېهوښه اوبېرته راپه واک شو.

نوخبره داده چې کله الهي فیوضات او برکات په یوه ځای اویاپه خلکو باندې راډېر شي نو که خلک د لوړ استعداد خاوندان وو نودوی دهغو برکاتو او فیوضاتو تحمل کولای شي، په دوی کې ددې فیوضاتو اثر پیدا کېږي، چې ژړا ورځي اویایې پوستکي خیږه

شي،لکه د صحابهٔ کرامو﵃ استعدادونه د حضرت نبي کریم ﷺ د مصاحبت او مجالست له امله قوي وو.

اوکه استعدادونه کمزوري وي، برداشت يې نه شي کړای، نو بيا بې اختياره شي، يابه لوېږي اويابه بې هوښه کېږي، ياچيغې اوفرياد شروع کړي.

اوس نو چې خبره په استعداد بنا شوه نو دصوفياء کرامو په سلسله کې چې دقرائت په حالت کې ځينوته داسې کيفيت پيدا کېږي ځينو ته نه پيدا کېږي، نوبيا خوداده چې چاته چې دغه کيفيت پيدا کېږي دا له وجد نه پيدا کېږي، ياداچې هغه سړي ته نيض کم رسيږي اودده استعداد زيات ده، ډېر خلک داسې وي چې د ډېرو غټو فيوضاتو څښتنان وي مګر جذب تراوسه په هغوی کې چا نه دی ليدلی، استعداد يې قوي دی، دقوت استعداد له امله دټولو فيوضاتو تحمل کړای شي نوځکه جذب نه پرې راځي اونه په عذاب کېږي.

اوکله بياداسې وي چې دفيوضاتو برداشت نه شي کړای نو هغه بيا بې صبره شي.

حضرت اسماء اوحضرت ابن عمر﵄ چې يوې وويل چې: (اعوذبالله من الشيطن الرجيم) اوبل وويل چې: شيطان يې خېټې ته ننوتلی دی. نودوی خو يا قياس په خپل ځان کړی دی چې دوی ته جذب نه پيداکېده ، ددوی استعداد قوي و نو ويلي يې دي چې

دا د شیطان اثر ده. اویا دوی ته دهغو خلکو په باب کې خبره شوې چې دوی په تکلف سره جذب کاوه، نوځکه یې داخبره کړې ده.

نوداجذب دقرآن کریم د ویلو په وخت کې که داسې وي چې سړی په اختیار کې وي، او سره له اختیاره غورځي حتی ددغو متجاذبینو په هکله له یوچا نه څوک پوښتنه کوي. او وایي چې که سړی د بام په سر ناست وي، ده ته تلاوت شروع کړل شو، اوبه دغه شخص باندې جذب راشي چې دی له خپل ځان څخه خبر نه وي اوله بام څخه لاندې راولویده، نودا په رښتیا سره دخدای پاکﷻ له پاره جذب ده. اوکه دځان د ضرر او دفعې معلومات ورته کېدل اوله ضررې شیانو څخه ځان ساتي اوښه پوهېږي مګر بیاهم قصداً ځان وهي خلکو ته ځان ښیي بیا توهم د شرک ده. له دې امله که د نقشبندیه طریقې زیاتره کتابونه وکتل شي نو زیاتره په دې تاکید کوي چې: ترڅو پورې چې دچا اختیار وي نو باید تحمل او برداشت وکړي، قصداً نارې سورې جورې نه کړي، ځکه دا شرک ده، ځکه ریا شرک ده، خو خلکو ته ځان ښیي ، مګر فی نفسه د قرآن له آیاتونو څخه جذب ثابت ده، ځکه ملائکې بې هوښه شي، آسمان وغوځیږي ، موسیؑ بېهوښه شوی، مګر انسان ته چې الله تعالی ﷻ قوي استعداد ورکړی وي نوبیاهغه ځان سمبالولای شي، اصلاً په انسانانو کې فرق ده، ځکه مونږ مخکې خبر وکړه چې په انسان کې د خاورې عنصر دی، لکه لمر له څلورو آسمانونو څخه راوځي اوځمکه یې برداشت کوي، دغسې د الله تعالیﷻ د انوارو برداشت هم انسان کوي.

که کله په یوځا باندي جذب راځي نو وظیفه دي نه کوي، او که جذب حالت غلبه پیداکوي نو په خفیه دي درود شریف وايي، سترګي دي نه پټوي او دڅا رابطه دي نه نیسي.

دجذب تخصیص ترکوم ځایه پوري ځانګړی نه ده، ځي په یوځا کي د ذکر په حالت کي جذب پیداکېږي دا غیراختیاري پیداکېږي او په حدیث شریف کي راځي ځي: د ذکر ځای جومات ده، له حضرت نبي کریمﷺ سره صحابهٔ کرام ناست وو ،یو کوځی نوی مسلمان شوی د جومات او صحبت له آدابو څخه ناخبره و، جومات ته ځي کله ننوت نود جومات په یوه کونج کي په بولو ودرېده، او بولي یي وکړې ، صحابهٔ کرام ورته په غوصه شول، حضرت نبي کریمﷺ ورته وویل ځي: پرې یي ږدئ، بولي ( متیازي ) مه پرې بندوئ ، کله ځي هغه صحابي له بولو نه خلاص شو نوبیا حضرت نبي کریمﷺ راوغوښت اوپه نرمه طریقه یي پوه کړ، ځکه ځي نوی مسلمان شوی و، په ادابو پوه نه و، معذور و، نو حضرت نبي کریمﷺ ورته وویل ځي دا جوماتونه ددي له پاره نه دي جوړ شوي ځي څوک دي پکي بولي او قاذورات وکړي، جوماتونه دذکر له پاره جوړ شوي دي، د لمانځه او دقرآن کریم دتلاوت کولو له پاره جوړ شوي دي.نود ذکر خپل ځای جومات ده، اوجذب ځي ځاته بې اختیاره پیداکېږي نود ذکر ځای جومات ده ، نوپه جومات کي به جذب هم ورته پیداکېږي.

دا تخصیص بیا تر جومات پوري نشته ځي په دبنته کي دي سړي ته جذب پیداکېږي نوهغه دي روا وي اوکه په جومات کي

پیداکېږي هغه دې ناروا وي. کله چې دا عمل اختیاري نه ده، اوهغه د الله ﷻ دذکر له تاثیره پیداکېږي، دقرآن او ذکر له امله تاثیر پیداکېږي دذکر ځای جومات ده نوپه جومات کې سړي ته خامخا جذب پیداکېږي.

له حضرت نبي کریمﷺ څخه روایت شوی دی چې: صحابهٔ کراموؓ ته فرمایي: کله چې تاسې د جنت په باغچوتېرېږئ نوپکې څرېږئ ،صحابهٔ کراموؓ ورته وویل چې د جنت باغچې څه شی دي؟ حضرت نبي کریمﷺ ورته وویل چې: هغه د ذکر حلقې دي. په کوم جومات کې چې ذکر کېږي تاسې ورشئ اوشرکت پکې وکړئ دا په حقیقت کې دجنت د میوو خوراک دی. یعنې دجنت د دخول سبب دی، الله تعالیﷻ یې ددې په سبب باندې جنت ته داخلوي، خو بیاهم جائز ده، په هغه کې خبره نشته مخکې مو څو څو ځله بحث وریاندې کړی دی.

خود جذب په هکله احتیاط په کار ده، څومره چې دسړي په وس کې وي کنټرول په کار ده، د نقشبندیه طریقې ښېګنه اوبهتري چې په نورو طریقو باندې ده دهغې یو علت دادی چې دا لاړ له ریا څخه خالي ده، په دې لاړ کې له اللهﷻ اومخلوق نه پرته بل څوک خبر نه وي. نوددې له امله داخبره چې څومره پټه وي حتی الامکان چې څومره یې له وسه وي بهتري په دې کې ده چې کار په خفیه وي، مګر کله که له اختیاره ووت نوبیاهغه بېله خبره ده.

نودجذب په هکله کتابونه داسې واقعات رانقل کوي چې داسې کیفیات خلکو ته پېښ شوي دي چې له بام نه لوېدلي دي اوپښه یې ماته شوې ده، څکه غیر اختیاري عمل ده، یوڅوک خان په اور باندې نه سوځوي اوخپل خان نه خوږوي، په غیر اختیاري امورو باندې یې خدای تعالیٰ ﷻ هم نه نیسي. اوچې خبره بیا دعشق الهي وي، یعنې اشتباه خو پکې نشته ،یواځې خبره د احتیاط ده، چې باید په دې لاره کې احتیاط وشي چې خلک داګمان او فکر ونه کړي چې طریقت له چیغو اونارو وهلو څخه عبارت ده، اویاڅوک دا فکر وکړي چې په طریقت کې کمال داده چې څوک ډېرې چیغې ووهي، نو اصل خبره داده چې په دغه سړي باندې باید له خدای ﷻ نه پرته بل هېڅوک خبر نه شي، دغه دوستي او اخلاص درته دآخرت له پاره یوه سرمایه ده، اوکه خلک ووایي چې فلانکی شخص ډېرې ښې وظیفې کوي، ډېر ښه جذب کېږي ،داسې ذاکر ده اوداسې نارې وهي خو چې نیت یې دخدای ﷻ رضا نه وي نو څه فائده وربانديې مُرتّبه نه ده، نو حتی الوسع باید انسان خپل خان په واک کې وساتي اوله کنترول څخه ونه وځي.

## دحضرت عبدالخالق غجدواني قدس سره خپلومریدانو ته بهترین نصیحت

حضرت خواجه عبدالخالق غجدواني قدس الله سره په یوه تفصیلي نصبحت کې خپلو شاګردانو اومخلصینو ته وایي چې:

تاسې اول ځانونه اولیاء جوړ کړئ ، له ځانونو څخه هغه خلک جوړ کړئ چې په هرآن، هره لحظه کې مو له خدای سره علاقه وي، هغهﷻ مو په یاد وي، له خدای تعالیﷻ نه یوه لحظه هم مه غافله کېږئ! خو که بیامو هم وس نه رسېده اودغه مقام ته رسېدای نه شوئ نوبیاددغسې خلکو په ځان اومال خدمت وکړئ ترڅو یې تاسې هم په عبادت او خدمت کې ورشریک شئ! ولې ؟ ځکه داهغه خلک دي چې ددوی دحق له جذباتو نه یوه جذبه دټولو انسانانو او پېریانو له عبادت سره برابره ده.

ځکه هغه د اور لمبه ده، دکوم اور ؟ د عشق الهي د اور لمبه ده. چې له هغه نه بې اختیاره وځي.

پتنګ چې ددنیا له دغې رڼا سره مینه لري،په دغه رڼا باندې دومره عاشق ده چې خپل ځان ورباندې وسوځي، داچې څوک دخدای پاکﷻ په انوارو باندې مین ده، هغه انوار اوتجلیات ورته ښکاره شي ، دهغو په عشق کې داسې پېښه هم راځي چې دېر بزرګان د جذب په حالت کې دومره بې اختیاره شوي دي چې روح یې هم قبض شوی دی.

سالک فرمایي:

ای مرغ سحر عشق ز پروانه بیاموز کان سوخته را جان شد و آواز نیامد

سالک هغه چرګ ته چې سهار وختي نارې وهي هغه ته وایي چې: عشق له پتنګ څخه زده کړه چې یوځل له تودرو څخه خبر شو

نوبیایې په دوهم ځل خبر رانغی او ولاړ پکې مړ هم شو، نودچاچې دخدای تعالیﷻ سره عشق زیاتیږي بیاپه دې لار کې فنا کیږي اوچې فاني شو نوبیاپه تکلیفونو باندې صبر کوي اوهیڅ پروا یې نه کوي.

بله خبره داده چې که مریدانوته په دغه لاره کې څه تکلیف رسیږي، جذب په خپله تکلیف ده، نوچې په دغه تکلیف باندې صبر وکړي نوپه صبر باندې کوم مقام ورته ورکول کیږي.

## صبر څه ته ویل کیږي؟

صبر په لغت کې بندوالي ته ویل کیږي.

صبر په درې قسمه ده: صبر علی الطاعة. صبر عن المعصیة. صبر علی المصیبت.

**صبر علی الطاعة:** لمونځ، اودس، روژه، جهاد، حج اونور عبادات په نفس باندې سخت وي، نوکه له دې سختوالي سره سره څوک عبادت کوي نودې ته صبر علی الطاعة وایي.

**صبر عن المعصیة:** مطلب داچې نفس غواړي چې زنا، غلا وکړي، شراب وڅښي ، خواهش یې د ګناهونو په لوري وي، اوته نفس له ګناهونو راوګرځوې. دې ته صبر عن المعصیة وایي.

**صبر علی المصیبت** : دامعنا چې کوم تکلیف دمال، اولاد اوځان ورته ورسیږي، په کوم مصیبت اخته شي، له مرضونو اونورو آفاتو سره

لاس او ګرېوان شي، نو نفس ددې مخالفت کوي اوته پرې صبر کوې ، له الله تعالی ﷻ نه پرته يې بل چاته نه بيانوې. نو دې ته صبر على المصيبت وايي.

**صبرعلى الطاعة** ، چې دخدای تعالی ﷻ په بندګي باندې څوک صبر کوي نود قيامت په ورځ ددغو صابرينو له پاره په جنت کې (۳۰۰) درجې دي، چې له يوې درجې څخه تر بلې درجې پورې دومره مسافه ده لکه څومره مسافه چې د آسمان او ځمکې تر منځ ده.

**صبر عن المعصية**: چې له ګناهونو څخه څوک صبر کوي نوددې انسان له پاره په جنت کې (۶۰۰) درجې دي، چې ددغو درجو په منځ کې تفاوت د اووم اسمان اود ځمکې تر اووم طبقه پورې ده.نو فاصله دومره زياته شوه.

**صبرعلى المصيبة**: چې څوک کوي، دده له پاره په جنت کې (۷۰۰) درجې دي ، هره درجه له بلې سره دومره فاصله لري لکه له عرش عظيم نه تر تحت الثرى پورې.

اوس نو که سړی کوشش وکړي اوپه عبادت باندې ځان عادت کړي نو نفس يې ورسره نه مني سرزوري کوي، عبادت او ذکر نه برداشت کوي اوته په خپل نفس باندې زور راولې په تنګ يې کړې ، په طاعت باندې صبرکوې، نوددې په عوض کې هغه د جنت درې سوه درجې دي ، داچې نفس د ګناهونو په لوري ځي نو معلومه خبره ده چې انسان تباه کېږي نوچې څوک له ګناهونو څخه راګرځي نودا له ګناهونو څخه ځان ساتنه هم بيادومره درجه لري، ثواب يې هم زيات ده. شپږ سوه درجې دي.

بیاځي په عبادت کې څه تکلیف انسان ته پیدا کېږي ، مرضونه ، بې خوبي پیدا کېږي، نور تکلیفونه پیدا کېږي په هغه باندې چې صبر کوي، نو بیایې هغه مقام ده چې نه سوه درجې ورکوي چې هره درجه یې لکه له عرش عظیم نه تر تحت الثری پورې.

نول وخت داکوشش په کار ده چې هر وخت سړی په هر رنګه تکلیف اخته وي نو باید له خدای تعالی ﷻ نه پرته یې بل چاته ښکاره نه کړي اونه بل چاته شکایت وکړي. یوداسې چې څوک دې دمرض او مسکنت حال وپوښتي او ته ورتهووایې هغه بېله خبره ده ، هغه شکایت او بې صبري نه ده، بې صبري داده چې مرض، مسکنت یا بیکسي په چا باندې راشي نوله دغو مرضونو، مسکنت او بېکسي نه به شکایت نه کوي په دغو به بې صبري نه کوي اوهرڅای به یې نه بیانوي چې زه څو له دې حالت نه ډېر په تکلیف کې یم، در په در شوم ،نودا بیا شکایت ده، دا شکایت به نه کوې.

دایو لوی تکلیف ده چې یوسړی په عباداتوکې کوښښ کوي ترڅو یوه مقام ته ځان ورسوي او رسیږي نه، نو په دې حالت کې چې انسان خدای تعالی ﷻ ته التجا کوي، له بنده نه یې نه غواړي، نو په دې سره الله تعالی ﷻ دغه بنده ته هماغه مقامات ورکوي.

نوتوله معامله باید له خدای تعالی ﷻ سره وي، بندګان وسیله دي، ډاکټر وسیله دی، مولوي صاحب وسیله دی، پیر وسیله ده، زیارت وسیله ده، هغوی د خدای تعالی ﷻ په ورکړه باندې کفایت

کوي، په خپله ددوی په وس کې هېڅ هم نشته، نوداچې سړی ډاکټر ته ځي، نوپه حقیقت کې یې اعتماد په خدای پاکﷻ باندې وي.امید به یې خدای پاک ته وي، که یوځوک زیارت ته ورځي یابل هرځای ته چې ورځي امید اوالتجاء به یې خدای پاکﷻ ته وي، نوپه دې سره به یې بیا الله تعالیﷻ مشکلات ورحل کوي، ځومره چې ځوک الله تعالیﷻ ته نږدې کېږي نوبیادهغو خلکو صبر کول هم ډېر اجر لري او خدای پاکﷻ په همداسې خلکو باندې ډېر ډېر تکالیف او امتحانات راولي.

## د الله تعالیﷻ لوی امتحانات په خپلو پیغمبرانو وي

حضرت زکریا‎ؑ د خپل اُمت په وخت کې کفارو پسې واخیست اود مرګ اراده یې ورته کړې وه، دی په منډه باندې روان ده، په یوه ځای کې یوه غټه ونه په مخه ورغله، ده له دغې ونې ځخه پناه وغوښتله چې: ماته پناه راکړه ! کفار مې وژني، ونه ورته دوه ځایه شوه، ده ته یې پناه ورکړه اوبېرته پرې راټوله شوه، کفار چې کله دې ونې ته راورسېدل نو شیطانؔ بدبخته علیه اللعنة دوی ته دسړي په شکل کې راغی او دیؑ یې وروښود. او ورسره یې دا چل هم ورروښود چې ( اره ) راوړئ اودغه ونه پرې اره کړئ ترځو په دغه ونه کې دی هم اره اره شي، دوی چې کله اره راوړه او اره یې په ونه کېښوده او اره یې شروع کړه، دده بدن مبارک ته ورسېده، نوپه دې

حالت کې یې له خولې څخه چیغه ووته ، دخدای تعالیٰ ﷻ له لوري ورباندې غږ وشو چې: ګوره بیا آه ونه کړې، کنه نوم به دې د انبیاء کرامو علیهم السلام له صف څخه وباسم. ولې ؟ زه دې هېر وم چې تا ونې ته پناه ور وړه؟ نوده مبارک خپلې شونډې کلکې کړې تردې پورې چې ټول بدن یې اره اره شو، بیایې دوهمه چیغه نه ده کړې.

ګوري بدن یې په منځ دوه ځایه شو، دځومره لوړې مرتبې څښتن و خو چې کله یې التجا له الله تعالیٰ ﷻ نه پرته بل چاته شوه نو الله تعالیٰ ﷻ په دنیاکې پرې دا تکلیف راووست او ورسره یې د چیغې په وخت کې بیا دومره تهدید کړ چې ګوره چیغه ونه کړې ، که نه وي نوم به دې د انبیاء کرامو علیهم له صف څخه وباسم.

نو که یوځوک طالب وي، مجاهد وي، صوفي وي، یا هم عالم وي هغه به په دغه لاره کې نسبت عوامو ته زیات تکالیف برداشت کوي، په عبادت کې به تکلیف کوي، ځان به له ګناه څخه په ساتلو مجبوره کوي، مصیبت او تکلیف که ورته پیداکېده نوپه هغې به صبر کوي ځکه ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ . نو مطلب مو دادی چې دا په نفس ډېره درنه ده چې هغه دې په عبادت کې ځان سختې ته ورکړي، خو که یوځل نفس راقابو شي، صبر وکړل شي،بیا دی په خپله عادت اخلي که هرځومره شوخي او سرزوري پکې وي هغه له منځه ځي. هغه بغاوت یې ورک شي اوبیا انسان ته دنیکۍ په لوري الهام کوي او بیا هغه تکلیف چې دنفس له وجې به په عبادت کې ورته پېښېده هغه هم له منځه ولاړ شي.

## ټوله شپه ذِکر کول د کتاب د علم دزیادت سبب کېدل

ما له خپلو مشائخو کرامو څخه اوریدلي دي چې: زمونږ داسي معاصرین هم وو چې له ماخوستن څخه وروسته به په وظیفه کې کښناستل آن تر سهاره پورې . یوه ملګري خبره کوله چې: مابه ډېره وظیفه کوله، اود درس له امله دا راته سخته هم وه، نو مې له ځان سره فیصله وکړه چې یوڅه به په ځان تکلیف راکم کړم نو به په کتاب ښه پوهېږم، مطالعه به مې روانه شي، نو دی وایي چې کله ما خوب ډېر کړ نو غفلت مې ډېر شو، نوپه کتاب نه پوهېدم. خو چې کله مې بېرته هغه خپل معمول شروع کړ چې له ماخوستنه به‌تر سهاره پورې کښناستم نو وجود به مې هم سپک و، طبیعت به مې برابر و اوپه کتاب به هم ښه پوهېدم.

نوداچې څوک په عباداتو کې تکلیف تېر کړي نود اللهﷻ رحمت زیاتیږي، علوم لدنیه اوموهبیه یې په برخه شي، شرح صدر یې په برخه شي، سکون او اطمینان ورته حاصل شي.

په انبیاء کرامو علیهم السلام او صحابهٔ کراموؓ په ظاهره ډېر تکلیفونه تېر شوي دي خودا ټول به یې په ځان زغمل اوله دې سره سره به یې قلبي اطمینان هم وو، دخدای تعالیﷻ له لوري به راحت ورسره مل وو، او تکلیف به ورته آسانه و.

دحضرت علي ﷜ چې کله غیشی په ورانه کې ولګېده، کله یې
چې هغه غیشی ورځخه اېسته نو ډېر درد یې کاوه، ده ﷜ ورته
وویل چې: کله زه په لمانځه ودرېږم نو بیا زه له ځان څخه ناخبره یم،
ناسې کولای شئ چې په هغه حالت کې راڅخه دا غشی وباسئ، کله
چې دی ﷜ په لمانځه ودرېده نو یې غیشی ورځخه واېست اودی
پرې خبر هم نه شو، دده ورون یې ورځېرې کړ خو دی بیاهم پرې خبر
شوی نه دی اونه یې هم پښه ښورولې ده. نومطلب داچې دا نفس بیا
دومره فنا فی الله شي، چې له خپل ځان څخه محوه شي.

دحضرت یوسف﷤ په هکله مو مخکې قصه کړې وه چې د ښځو
په حق کې راځي چې: ﴿ وَقَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَ وَ قُلْنَ حَاشَ لِلهِ مَاهٰذَا بَشَراً ﴾
کومو ښځو چې یوسف﷤ ولیده نو یې خپلې ګوتې پرې کړې،
نوچې د بنده په عشق کې انسان دې مقام ته رسېږي چې له ډېرې
حیرانتیا څخه خپلې ګوتې پرې کوي، دهغه تجلیات اوانوار دومره
پرې غالبه شوي دي چې له دې دومره سخت تکلیف سره سره دوی
په ځان هم نه دي خبرې شوي اونه یې خپلو ګوتو او لاسونو ته فکر
ده. نوداچې یوڅوک په عبادت کې لږ تکلیف تېر کړي، دخدای
تعالیٰ ﷻ په عشق کې بیاورته دغسې مقامات په لاس ورځي.

لکه چې په یوه روایت کې راځي چې: کله یوڅوک شهید کېږي
نود زنکدن تکلیف یې داسې دی لکه مېږتون ( مېږی ) یې چې
رچیچي، دا ولې؟ ځکه چې په شهید باندې الهي عشق غالب وي،
هغه خپل مقامات په همدې حالت کې په جنت کې له ورایهویني،

هغه حجابات ټول پورته شي، کله چې دغه مقام ورته پیدا شو نو که دی بیا ټوټې ټوټې هم شي نود هیڅ تکلیف احساس نه کوي.

که یوڅوک په هر لحاظ کوښښ وکړي د الله پاک ﷻ مرسته به ورسره وي. د هدایت اواطمینان لارې ورته خلاصوي، درحمت دروازې پرې راپرانیزي، او هر ډول تکلیف بیا ورته آسانه وي، مګر اصلي او بُنیادي خبره داده چې له نفس سره به مقابله کوو، د نفس مقابلې ته چې جهاد اکبر ویلی شوی دی هغه له دې امله چې تل تر تله انسان د نفس په مقابل کې ولاړ وي، څکه مثلاً که مونږ په جومات کې یو ساعت ذکر کوو، ژاړو، عبادت کوو، د آخرت په طرف مو پام وي، خو کله چې له جومات څخه ووځو بیا مو هرڅه هېر وي او بېرته په ګناهونو لګیا شو، خدای ﷻ ، آخرت ، سوال اوځواب داټول مو هېر شي. نو قدرمنو دا جهاد اکبر هلته چې په ناسته په ولاړه، په دنیاوي معامله کې لنډه داچې په هرشي کې به خپل نفس ته متوجه وي، مقابله به یې کوې.

کله چې تاسې عبادت کوئ نو نفس درته وایي چې خلکو ته ځان وښیه چې څه ښه عبادت کوي، نو ته به له نفس سره مقابله کوې، په عباداتو اومعاملاتو بلکې په هر هغه عمل کې چې هغه الله تعالیٰ ﷻ ته دنږدېوالي ذریعه وي اودی درسره مقابله کوي ته به هم ورسره په مقابل کې ولاړ یې، نوبیابه یوڅوک د کمال حدودو ته رسیږي، انسان ترقي کوي اود الله تعالیٰ ﷻ د دوستانو په ډله کې شمېرل کېږي، بیا ورته الله تعالیٰ ﷻ د نیکي کولو ملاتکې تاکي

ترڅو دی دنیکي کولو په لوري روان کړي اوله ګناهونوڅخه یې ساتني.

انبیاء کرام علیهم السلام معصوم دي، هېڅ ګناه نه کوي خو اولیاء الله معصوم نه دي، د شریعت په اصطلاح محفوظ دي. یعنې د انبیاء کرامو علیهم السلام له ګناهونو څخه د ساتنې ذمه الله تعالی ﷻ په خان منلې ده، په هغوی کې د ګناهونو کولو شوق نه پیدا کېږي. مګر اولیاء الله ترڅو چې تصفیه او تزکیه پکې راغلې نه وي نو کېدای شي چې ګناه ترې شوي وي خو چې یوځل دولایت مقام ته ورسیږي نو بیا ورسره هغه ملائکې مقرري شي چې له ګناه کولو څخه یې ساتي نویه دې سره دی محفوظ ګرځي، خو معصوم نه دي، څکه انبیاء کرام خو نه دي، خو که بالفرض ګناه ورڅخه وشي خو بیا وروسته ورته الهي خشیت پیدا کېږي، صحابهٔ کرام ﷺ چې ټول اولیاء الله دي، که به په دوی کې له چاڅخه لږ څه زیاتی او کمی وشو نو سم له لاسه به حضرت رسول الله ﷺ ته راتلل اوورته ویل به یې چې په مونږ دخدای تعالی ﷻ حکم جاري کړه! په خپله به یې ویل چې له ماڅخه دا تقصیر شوی دی او هسې نه چې دا پیټی مې بیا په آخرت کې دغاړې غړوندی شي اوپه عذاب اخته نه شم، نو له لاسه مې سنګسار کړه، یا مې اوس لاس پرې کړه، داهرڅه مې قبول دي خود آخرت له عذابونو چې خلاص شم، نو له دې امله یې الله تعالی محفوظ ګرځوي. خودې مقام ته رسېدل کوشش غواړي اوچې کوشش دې شروع کړ او ملا دې وتړله نوبیادې الله تعالی ﷻ

هم حفاظت کوي، بیاواجب تعالیٰ ﷻ ستا په قول، فعل،نیت، مجلس او صحبت ټولو کې اثرپیدا کوي.

**فائده:**

که یوڅوک په یواځې ځای کې ناست وي نو ټولې وظیفې کولای شي، خو که په یو مجلس کې ناست وي نوکه دچا یوه وظیفه ، یا دوه یا پنځه لطائف یا ذکر سلطان وي هغه کولای شي اوڅه تاوان نه لري، مګر نفي او اثبات به په غټ مجلس کې نه کوي.

اودیوې طریقې چې دڅومره مشائخو کرامو رابطې ونیول شي چاته د مرحوم خلیفه صاحب رابطه، چاته د دین محمد خلیفه صاحب رابطه، چاته د احمدضیاء خلیفه صاحب رابطه، چاته د داد محمد خلیفه صاحب رابطه، چاته د عنایت الله خلیفه صاحب رابطه، چاته دحضرت صاحب مبارک رابطه پیدا کېږي ، چاته چې د چا رابطه پیدا کېږي نوهغه دټولو فیض پرې راجلبیږي، رابطه چې څومره پورته برابرېږي دغومره کار هم ورسره جوړېږي. په یوه مجلس کې چې دیوه ملګري وظیفه په ښه طریقه ترسره شي نود پاتې ټولو ملګرو کار ورسره برابر شي. خو یوه خبره داهم ده چې که یوملګري له اصلِ فیوضاتو څخه منکر وي ، دغې لارې ته په اخلاص قائل نه وي، له خپل شیخ سره د زړه له تله اخلاص ونه لري، نوبیاداسې هم پېښیږي چې ددغه یوه منکر په سبب دټول مجلس کار خراب شي او فیوضات پرټول مجلس بند شي.

علامه رومي ليکي: چې ديوه شوم ( سپهره ) له امله د ټول روم ښار وسوځېد. نو کله داسې هم وي چې ديوه بې ادب له امله ټول کار خراب شي.

نو د خبرې پای دادی چې څومره ديوه ملګري اخلاص وي، نو ددغه يوه ملګري له امله چې الله تعالیٰ ﷻ يې کار برابر کړي د ټول مجلس کار ورباندې جوړېږي. نو الله تعالیٰ ﷻ دې مونږ ټولو ته واقعي اخلاص او مينه محبت راپه برخه کړي.

آمين ثم آمين

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا ومولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين

الله اكبر

# (۷) مجلس

## وخت يو نعمت دی چې بايد ضائع نه کړل شي او د تکليفونو بدله به خامخا ورکول کېږي

( عن ابی هريرة ﷺ قال: سُئلَ رسولَ اللّٰهِ ﷺ ای الاعمال افضل؟ قال الايمان بالله، قال ثم ماذا؟ قال الجهاد فی سبيل الله، قيل ثم ماذا قال حج مبرور ) وفی رواية محمد بن جعفر قال الايمان بالله ورسوله )

[ رواه مسلم / ج ۱ / ص ٦٢ ]

( عن عبدالله ﷺ عن النبی ﷺ قال افضل الاعمال او العمل الصلوة لوقتها و برالوالدين ) [ رواه مسلم / ج ۱ / ص ٦٢ ]

له حضرت نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه شوي ده، چې په اعمالو کې ترټولو ښه کوم عمل ده؟ نوده ﷺ ورته په ځواب کې وويل چې: په الله تعالی ﷻ باندې ايمان، بيا ورڅخه پوښتنه شوې ده، چې بيا کوم عمل بهتر ده؟ نوبيا ده ﷺ ورته وويل چې: له مور او پلار سره ښه کول، بياترې پوښتنه وشوه چې بيا کوم عمل بهتر ده؟ ده ﷺ ورته وويل چې: په خپل وخت لمونځ کول.

داسې په متعددو طريقو پوښتل شوي دي، بيا کله ده ﷺ يو رنګه ځواب ورکړی دی کله بل ډول.

زما اصل مطلب داده چې : دلته محدثین کرام لیکي چې: کله کله
چې حضرت نبي کریم ﷺ یوچاته داسې ځواب ورکړی چې په ټولو
کې ښه عمل داده چې لمونځ په خپل وخت وکړل شي ، کله یې په
دې ځواب ورکړی چې جهاد فی سبیل الله وکړي، کله یې بیاداسې
ځواب ورکړی چې صدقې ورکړئ ( اطعام الطعام ) نوددې ټولو
بهترینه توجیه داسې ده چې : په کوم وخت کې به دکوم شي ډېر
ضرورت و نو حضرت نبي کریم ﷺ به دهغه موافق ځواب ورکاوه،
لکه یوځای کې چې د چوپوالي خبره بهتره ده، نو هلته علماء لیکي
چې له چوپتیا ښخه بهتر عمل نشته، چې سړی چُپ کیني اوچېرې
چې دخبرو ضرورت وي هلته دې خبرې وکړي، ښکه چې بیا هلته
ترخبرو کولو بهتر عمل نشته، نو هرشی له خپل وخت سره موافق
په کار ده. یعنې که کله دخبرو ضرورت وي، بیا باید خبرې وشي
اوکه دخبرو ضرورت نه و، له عبث مجلسونو ښخه باید ځان
وساتي، د مشر ، استاد، مرشد په مخکې باید بیا رنه غږیږي،
هلته بیا خاموشي ادب ده.

نور ددنیا ژوند دامتحان ژوند ده، انسان چې ځای، وخت اومحل
پېژني باید له هغه سره ژوند غوره کړي. په هر قدم کې باید
دشریعت مکمله اتباع غوره کړي. نوبیابه دغه انسان دخدای
تعالیﷻ په وړاندې دومره عزتمن وي چې بیا الله تعالیﷻ دده
خوښه او رضا غواړي.

یوې خواته بار بار په آیت کې اورو او وینو یې چې: ﴿ وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ ۝ ﴾ زر ده چې تاته به رب هغه څه درکړي چې ته به پرې خوشحاله شې، نو اوس ګورئ چې حضرت نبي کریمﷺ دشریعت مکمل تابع ده، نو الله تعالیٰﷻ ورته وایي چې: زر به دې راضي کړم. او بلې خواته دحضرت ابوبکر صدیقؓ په هکله چې کله ده یو غلام ( حضرت بلالؓ ) آزاد کړ نو کفارو به ویل چې ده خو له حضرت ابوبکرصدیقؓ سره احسانات کړي وو نوځکه یې آزاد کړ نو الله تعالیٰ دده په شان کې وفرمایل چې: ﴿وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُۥ مِن نِّعْمَةٍ تُجْزَىٰٓ ۝ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِ ٱلْأَعْلَىٰ ۝ وَلَسَوْفَ يَرْضَىٰ ﴾ معنا داچې زر به خدای تعالیٰﷻ حضرت ابوبکر صدیقؓ راضي کړي،نوحضرت ابوبکرصدیقؓ ته به هم خدای تعالیٰﷻ هغه مقام ورکړي چې دی به پرې راضي وي.

## دحضرت ابوبکر صدیقؓ په لباس خدای پاکﷻ فخر کوي اوملائکې دده په شان لباس کوي

په یوه مجلس کې حضرت ابوبکرصدیقؓ حضرت نبي کریمﷺ ته راغی ،یوه شړۍ یې له ځانه تاوه کړې وه، شړۍ خو به بدن باندې نه تم کېږي نو په هغې کې یې سورې کړې و، اوبیایې په هغو سوریو کې څه لرګي او خلې ورکړي وو، اوهغه شړۍ یې پرې تکیه کړې

دي، جبرئیل هم دې مجلس ته راغی، حضرت نبي کریم ته یې سلام واچاوه، له سلام څخه وروسته یې له حضرت نبي کریم څخه وپوښتل چې: حضرت ابوبکرصدیق ولې په داسې خواره شړې کې ناست دی؟ حضرت نبي کریم ورته وویل : دده چې څومره دنیا اوهستي وه د مکې معظمې له فتحې څخه مخکې یې هغه ټوله داسلام په لاره کې صدقه کړه ،پوره لباس نه لري، نو ځکه یې دا شړې په ځان راتاوه کړې ده. نو جبرئیل ورته وویل چې: زه الله تعالی رالېږلی یم ، خدای تعالی ویل چې حضرت ابوبکرصدیق ته مې سلام وایه او ورته ووایه چې : ته ددغه فقر په حالت کې له ماڅخه راضي یې اوکه ماته په غصه یې ؟ حضرت نبي کریم حضرت ابوبکرصدیق ته مخ ورواړه او ورته یې وویل چې: رب تعالی درته سلام رالیږلی دی او وایي چې په دې حالت کې له ماڅخه راضي یې اوکه ماته په قهر یې ؟ حضرت ابوبکر صدیق په ژړا شو چې: آیازه به خدای پاک ته په قهر یم ؟ زه راضي یم ، زه راضي یم، حضرت جبرئیل حضرت نبي کریم ته وایي چې: والله له کومه وخته چې ده دغه شړې په ځان راتاوه کړې ده نوخدای تعالی له لوري د عرش ملائکو ته دا حکم شوی دی چې تاسې ټول دغه شړې واغوندئ او الله تعالی وایي چې ابوبکر ته ووایه چې که ته له ماڅخه په دغه حالت کې راضي یې نوزه له تاڅخه راضي یم.

حضرت ابوبکر صدیق د حضرت نبي کریم یو اُمتي ده،خو رختونه یې پېژندلي ، خپل حرکات، سکنات یې له شریعت سره

برابر کړي دي،نوبیایې مقام داده چې الله تعالیﷻ دده ؓ رضا غواړي، سلام ورته را استوي او ورته وايي چې آیا ته له ماڅخه راضي یې اوکنه ، نودا مقامات دوی ته هسې په لاس نه دي ورغلي،لوږې، تندې، قسماقسم تکلیفونه یې تېر کړي دي، نوبیاخدای ﷻ دا مقام ورکړی دی.

## د حضرت علي ؓ د فقر او غُربت واقعه

حضرت علي ؓ وايي چې: زمونږ په کور کې زما اودحضرت فاطمې رضی الله عنها بِسترې نه وې چې مونږ پرې پرېوتلي وای،یو پوستکی و چې د ورځې به مو په هغه باندې هغه اوښ ته چې مونږ ته به یې اوبه را اېستې وابنه اچول اود شپې به زه اوبي بي فاطمه رضی الله عنها په هغه باندې ویده کېدو، هغه فاطمه رضی الله عنها چې دحضرت حضرت نبي کریمﷺ جز ده اود جنت دټولو ښځو سرداره ده. ۱

حضرت عليؓ وايي چې زمونږ په کور ډېرې لوږې تېرې شوي دي، له کوره راووتم چې په لاړ کې یو دینار پروت دی، ورته ودرېدم چې زه یې واخلم اوکه نه ؟ خوچې خپلې اود کورنۍ لوږې ته مې وکتل او څښتن یې هم نه و، نودا دینار مې راواخیست اوله ځان سره مې هغه تجار ته یوړ چې غله دانه یې خرڅوله، څه اوړه مې پرې واخیستل کور ته مې راوړل، حضرت فاطمې رضی الله عنها

نه مې وویل چې: دا اوړه لاندې کړه او ودې. ورځخه پخه کړه چې ویې خوړو، کله یې چې لاندې کول نوله ډېرې کمزورۍ یې نشوای لمدولای، د تندي وبنبتان به پکې لګیدل اوله ډېرې کمزورۍ به پړمخې پرې ولوېده.

بي بي فاطمه رضی الله عنها د حضرت نبي کریمﷺ د بدن یو جز ده، خوداسې تکلیفونه پرې تېرشوي دي چې ددې توان اوطاقت یې نه درلود چې اوړه لامده کړي. خودغه خلک و چې تکلیفونه یې رګالل اوبیاپه دنیاکې پرې الله تعالیٰﷻ داسې وسعت راووست چې همدا حضرت عليτ وایي چې : یو وخت زمونږ په کور کې په شپو شپو خوراک نه پیداکېده اونن ورځ زما د مال څلوېښت زره صدقه کېږي، دابیا په دنیاکې الله تعالیٰﷻ داسې وسعت پرې راوست.

حضرت حمزهؓ د حضرت نبي کریمﷺ تره او رضعي ورور یې دی چې په اُحُد کې توتې اوشهید شوی دی، دکفن په وخت کې دومره شی نه و چې دی یې پکې پټ کړای وای، یوه شړېه وه چې د سر طرف به یې پټاوه نوپښې به یې لوڅې شوې اوچې پښې به یې پټولې سر به یې لوڅ شو، آخر یې سر په شړېه کې ورپټ کړ اوپه پښو یې وابنه ورواچول او دی ؓ یې بیا خښ کړ.

نوکه وختونه ضائع تېر نه شي اود دین له پاره تکلیفونه په ځان تېر کړي نو بیا الله تعالیٰ جل جلاله هم ډېر مهربان ذات دی. هم په دنیاکې خپل دوستان ساتي، دعزت ژوند یې په برخه کړي اود شرافت مقام ورکړي، سکون او اطمینان یې په برخه شي

اوهمدارنګه په آخرت کې يې هم بيا په هغومقاماتو نازوي چې بيا خداى جل جلاله ددغه انسان رضا غواړي اودى راضي کوي.

مونږ اوتاسې که د الله تعالى جل جلاله احساناتو او ښېګڼو ته وګورو سره له دې چې اعمال مو په هېڅ حساب دي خوبيامو هم ساتي. اوکه مونږ يوڅه اندازه په خپل اخلاص کې زياتوالى راولو اوپه ځان تکليف تېر کړو نوبيا وګورئ چې د الله رحمت څرنګه په جوش کې راځي اود داسې رحمت معامله به راسره کوي لکه څرنګه يې چې له صحابهٔ کرامو ﷺ او انبياء کرامو عليهم السلام سره کړې ده. خو بُنيادي خبره داده چې انسان لږ ځان ته متوجه شي اوپه ځان باندې يوڅه تکليف راولي له نفس سره مجاهده اوله شيطان سره مقابله وکړي.

د هر صحابي ﷺ مقام ته چې ګورې دا مقام يې ښکه موندلى چې هغه په ځان دومره سختۍ تېرې کړي دي چې بل چانه دي تېرې کړي. همدارنګه د هر ولى الله مقام ته چې ګورې هغه دا برخه له دې موندلې ده چې ځان يې تکليفونه ته ورحواله کړى دى. يو صحابي ﷺ مبارک وايي چې مونږ داسې وخت هم ليدلى دى چې پوره لنګ اوڅادر به مو نه وو. بلکې يو لنګ به مو وو چې د کاروبار په وخت کې به مو له ځان څخه راتاواوه، د خاورو اوخولو له لاسه مو په غاړو کې د خيرو طوقونه جوړ شوي وو. حضرت سعد ﷺ خپل زوى ته وايي چې: که زمونږ هغه حالت دې ليدلى واى چې مونږ به ورېه او پوستکي اغوستي وو اوچې بيابه کله باران وشو نوډېر سخت

ځېونه به راځخه پورته کېدل لکه د مېږو له شپاله (یعنې د مېږو د درولو ځای) ځخه. اوس خو شکر دی په تاسې باندې راحت راغلی دی.

## د حضرت علي رضی الله عنه د فقر واقعه

حضرت علي ﷺ فرمایي چې ما پوستکی اغوستی و اوله لوږې ځخه په تنګ شوم، په کور کې هم څه نه وو اود باندې راووتم، د یوه یهودي باغ وو اود دېوال له یوه سوري ځخه مې وروکتل چې د باغ مالک له کوهي ځخه اوبه راباسي او ونې اوباغ پرې اوبه کوي، نوکله یې چې زه ولیدلم نو یې راته وویل چې: ای وحشی! مزدوري نه کوې؟ ما ورته وویل چې کوم یې. د اوبو یوه بوکه په یوه خرما باندې، نوتردې اندازې مې کار ورسره وکړ چې زه په دې پوه شوم چې اوس مې دومره خورما ګټلي دي چې زما نن ورځ او شپه پرې تېرېږي نور مې ورسره کار بس کړ. نو ګورئ په دغه صحابهٔ کرامو ﷺ پورې به کفارو استهزاء کوله او حضرت نبي کریم ﷺ ته به یې ویل چې مونږ ستا په دغو ملګرو باندې شرمېږو، دوی ډېر زیات فقراء او مساکین دي، نوځکه له تاسره نه کینو.

ګورئ عزتمنو! که څوک عزت غواړي، هغه په دین کې ده. که په ظاهره سړی خېرن وي، لوږ وي، بې کسه اومسکین وي، هرځنګه چې وي خوچې خدای پاک ﷻ عزت ورکړ نودغه شخص بیاپه دنیا

او آخرت کې له ټولو نه بهتره ده. اوکه په ظاهره یې هرڅومره ښه لباس برابر وي ،خوراک او څښناک یې هم ښه وي، خو چې له خدای تعالیٰ ﷻ څخه لیرې وي،نوبیا له دغه انسان څخه ذلیل انسان بل نشته.

نو عزت په دې کې دی چې په دین پورې لاس ونیسو اوکه خدای مه کړه له دغه دین سره مو بې پروایي وکړه اودغه دین ته مو په درنه سترګه ونه کتل بیابه د دغه دین له امله انسان بې قدره او بې عزته کېږي. کله چې په مونږ څه تکلیف راشي نو سمدلاسه راڅخه بې صبري وشي، نو عزتمنو سړی به تکلیف تېروي بیابه کامیابېږي.

اوس زمونږ طریقه دحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په واسطه له حضرت نبي کریم ﷺ څخه رانقل شوې ده. نو زمونږ د قافلې دغه ستر سالار حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې دې مقام ته رسېدلی، مونږ مخکې وویل چې په بدن یې پوره لباس نه وو او د لوږې له امله یې په نس پورې تیږې تړلې وې، په کور کې یې فرش نه درلود. اوبیاتاسې ته بهتره معلومه ده چې خدای تعالیٰ بیا څرنګه مقام ورکړ ؟ نو څوک چې په خپلو اسلافو پسې روان شي، دهغوی نقش قدم تعقیب کړي نو بیا الله تعالیٰ ﷻ دغه انسان له ناکامیانو څخه ساتي او د کامیابۍ تر پولې پورې یې رسوي، خو شرط داده چې مونږ اوتاسې یوڅه له ځان سره محاسبه وکړو اویوڅه خپل ځان ته متوجه شو. اوهمدارنګه له نفس سره محاسبه او له شیطان سره مقابله وکړو، نو بیا الله تعالیٰ ﷻ هم ډېر غفور او رحیم او ډېر غیرتي ذات ده.

انشاء الله چې په نیمه لاره کې به نه پاتې کېږو او تر خپل منزله به که خدای کول په ډېره آسانی ورسېږو.

وما ذالك على الله بعزيز وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا ومولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين





# (۸) مجلس

## د طریقت اصول او آداب

د ځینو شیانو په هکله له ماځخه بېلې بېلې پوښتنې کېږي، خو زیاتې یې د مشائخو کرامو په هکله کېږي.

ددې پوښتنه ډېره کېږي چې که یو سالک له یوچا سره تعلق د بیعت ولري نو بیا له بل چاسره تعلق جوړولای شي اوکه نه ، په نورو مجلسونو کې کېناستلای شي او کنه ؟

نو عزتمنو د طریقت اصل اصول دادي : څوک چې له چاځخه بیعت وکړي، نو دده دکامیابي او ترقي ټول کار تر خپل شیخ پورې تړلی وي، دی به په خپل شیخ باندې کامل اعتماد کوي، د وظیفې په وخت کې به دخپل شیخ سره رابطه ټینګوي، اذکار به دخپل شیخ په اجازه کوي، هغه چې کوم شی ورته وښایي نوهغه به کوي نو مطلب دادی چې له یوه شیخ سره د یو مرید اخلاص او تعلق څومره قوي شو نودغومره به دده هم کار په مخ روان وي.

اوکه داسې وي چې شیوخ ډېر شي، نوکه داسې وي چې په یوه طریقه کې وي لکه زمونږ دحضراتو مبارکانو چې کومه سلسله ده،

چې په وظیفو او صحبتونو کې یې ممانعت نشته، حتی اکثره یو بل
ته د وظیفو د بدلبدلو اذن هم کوي، خو له دې سره سره به یې بیا هم
اعتماد په خپل شیخ وي، هر مُرید چې اول یې له هرچاڅخه بیعت
کړی وي نو کار یې ټول له دغه شیخ سره تړلی دی اوله ده څخه
جوړیږي.

ځینې ملګري بیا داسې وي چې تعلق یې له نقشبندیې سره وي
خو له دې سره سره دقادریې شریفې له شیخ سره یې هم رابطه وي،
او هغه ورته د ځینو اذکارو اجازه ورکړي چې بیا وروسته دې مرید
ته تاوان کوي.

هره طریقه خپل خصوصیات لري ، دهغه خصوصیاتو موافق چې
سړی روان وي نو کار یې هم ډېر په مخ روان وي. زمونږ په سلسله
کې خصوصاً بیا د حضراتو مبارکانو د سلسلې په ابتدائي مرحلو
کې د خولې اذکار ښخي نشته، یواځې د سینې اذکار دي چې د
لطائفو په نامه یادیږي، بیا د څه وخت په تېرېدلو سره دځینو
اذکارو د ویلو اجازه ورکول کېږي ، ختمونه، تلاوتونه او نفلونه هم
په را وروسته وختونو کې وي. په ابتداء کې کار ټول په لطائفو
باندې کېږي. اود قادریې ملګري چې دهغوی ذکر ټول په خوله دی.

اوس نو چې هغه سړي ته څه وروښیي نو زمونږ د طریقې کار یې
خراب شي ، نو له دوه وو شیوخو ، دوو طریقو سره په یوه وخت کې
کار کول اوله دواړه سره رابطه جاري ساتل نه دي په کار. بلکې
بړاخې باید له یوې طریقې سره کار وکړي. اوبیاچې کله یوه طریقه

پای ته ورسېږي، نوله هغې وروسته دې بیا د دوهمې، درېمې، اوڅلورمې طریقې وظیفې واخلي، هغه هم دخپل شیخ په اجازه. په دې کې څه ممانعت نشته.

خوداچې سړی ټول اذکار په یوه وار په مخ بیایي، نوسړی پسې رسېدای نه شي اودې په ځای چې کار جوړ شي هغه نور هم خراب شي، نوپه دې هکله ډېر احتیاط په کار ده.

ډېر ملګري په بازار کې په ملنګانو پسې ګرځي، څوک ورته وایي چې فلانکی ډېرغټ متصرف دی، دی به بیا له هغه ملنګ سره تعلق جوړ کړي ترڅو دعا ورته وکړي،له هغه سره ناسته پاسته شروع کړي، نوله دې ځنه اجتناب ضروري دی، ځکه د لېونیانو اوملنګانو په جامه کې کله ډېر غټ خلک وي نو که له چاڅخه دهغوی په مقابل کې کله بې ادبي وشي نو بیا یې ټول کار خراب شي.

## دکابل دمتصرف دیوخلیفه صاحب سره چلند

دحضرت نورالمشائخ صاحب قدس الله سره یوه خلیفه صاحب چې د وردګو وو قصه کوله چې ما له حضرت صاحب مبارک څخه پوښتنه وکړه چې د کابل متصرف څوک دی؟ ده مبارک راته وویل چې: څه پرې کوې ؟ خو ډېر مې ټینګ کړ ، آخر یې راوښود چې په فلانکي ځای کې یو موچي ده ، د ونې ښخ ته ناست ده اوهغه د

کابل متصرف ده. زه ورغلم او بوټ مې ورباندې جوړ کړ. بیامې
دوهم خل ور واچاوه چې دا خو دې سم نه دی جوړ کړی، زه دده
حوصله معلوموم چې په متصرفینو کې څومره حوصله وي؟ درې
څلور خله مې بوټ ورباندې وګنډه بېرته به مې خلاص کړ خوده به
هیڅ غوصه نه کوله. بل کال مې بیا حضرت صاحب مبارک ته ډېرې
زارۍ وکړې ترڅو د کابل متصرف راوښيي، بیا یې راوښود چې په
فلانکي ځای کې یوسړی ده او هندوانې خرڅوي، سپینه خولۍ یې
په سر ده. هغه ته ورغلم او ورته مې وویل چې یوه هندوانه
راکړه، هندوانه یې چې راکړه ما بېرته ور وویشتله چې دا خو روغه
نه ده، ده راسره هندوانه تاو کړه او ورباندې ویې ویشتم چې زه خو
ځه موچي نه یم چې هغه به دې په عذاب کړ اوڅه به یې درته نه ویل

اوس نو دلته په خپلو کیفیاتو کې فرق وي. په چا د حلم صفت غالب وي، په چا د جلالیت صفت غالب وي. نوله داسې خلکو سره تعلق جوړول تاوان لري.

دلته زمونږ ډېر ملګري دي چې د وظیفو په لین کې یې کار ډېر خراب وو او حالانکه ډېرې ښې وظیفې یې وې. بیایې ویلي وو چې دلته ملنګ وو او له هغه سره یې وظیفې کړې وې، د لیوني په لباس کې وو او راته ویل به یې چې راځه وظیفې سره وکړو، نو هغه سره به یې وظیفې کولې نو ټول کارونه یې سره خراب شول.

نو په خپل شیخ باندې اعتماد کول، دهغه له دستور سره موافق ژوند کول ، د اصولو مطابق ژوند کول دا د طریقت له پاره بنیادي او اهم رکن دی.

## ادب

دوهمه غټه اومهمه خبره داده چې په طریقت کې باید انتهائي ادب وي. ځکه په اسلام کې ادب دی، دین ټول له ادب څخه عبارت دی (الدين كله ادب).

ځینې ملګري په ډېره غټه غلط فهمي کې دي، هغوی دهرڅا په اړه خبره کوي، نسب ته هیڅ اعتبار نه ورکوي ، لکه دا د وهابیانو مسلک هم ټول دغسې دی چې کوم آیاتونه د یهودو د آباوو او اجدادو په هکله راغلي دي چې مونږ دهغو څه متابعت کوو چې زمونږ پلرونه په هغو باندې روان وو.

نودوی په دې دلیل نیسي چې د ګمراه پلار ته خو څه اعتبار نشته. د قرآن کریم څخه ثابته ده چې نسب ته ډېر اعتبارنشته. نه! بلکې نسب ته ډېر اعتبار شته ، په قرآن کریم ثابته ده. د حضرت موسی ﷺ اود حضرت خضر ﷺ په واقعه کې هغه یو دېوال چې رنګېده نو حضرت خضر ﷺ ته په علم لدوني امر وشو اوهغه دېوال دوارو جوړ کړ. موسی ﷺ اعتراض وکړ چې ته دداسې خلکو دېوال جوړوې چې مونږ ته یې ډوډۍ هم رانکړه ، خو وروسته له فراقت څخه چې کله حضرت خضر ﷺ خواب ورکاوه( وَكَانَ أَبُوهُمَا صَٰلِحًا)

بغضي دلته يتيمان وو ، دهغوی پلار يو نېک سړی و، جلالين تفسير ليکي چې: په اوومه پېړۍ کې يې نېک سړی تېر شوی و، دهغه د احترام له امله الله تعالیٰ خپلو دوستانو ته امر کوي چې ديوال بې جوړ کړئ چې هغه خزانه يې ضائع نه شي. داچې نسب ته اعتبار نشته هلته چې عقيده بدله وي ، پلار مسلمان زوی کافر، زوی مسلمان پلار کافر، نو په هغه ځای کې بيا ګټه نشته. کله چې دواړه مسلمان وي، که په اعمالو کې فرق موجود وي هم يوبل ته ګټه شته. لکه چې په قرآن کريم کې رب تعالیٰ فرمايي (أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ) په جنت کې چې کله اولاد د جګې مرتبې څښتن وي اوپلار يې دغومره اعمال نه وي کړي نود اولاد د احترام په خاطر ورسره يوځای کړي. کله مور اوپلار ډېر صالح اونېک انسانان تېر شوي وي، خو له دې سره اولاد هم مسلمان ده مګر نېک عمل يې کم ده، نوبيادجنت هغې درجې ته چې هلته يې مور اوپلار دي دی هم دهغوی په واسطه هغې درجې ته رسيږي. په خپله الله تعالیٰ فرمايي (أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ) نوکه نسب ته اعتبار نه وای نوبيا زوی ولې هغې مرتبې ته رسيږي په کومه کې يې چې پلار قرار لري. او الله تعالیٰ دهغوی دخوشالولو په خاطر باندې په ده هم رحم وکړي.

## دمشائخو کرامو له نسبونو سره احتیاط په کار دی

دېر ملګري داسې وي چې دمشائخو کرامو اود استاذانو د نسبونو په هکله طعن اوتشنیع کوي . که سوچ وکړو چې آخر ددې مجالسو څه فائده ده چې مونږ خاص کر د خپلو مشائخو د اولادونو په عملونو اودهغوی په کارونو کې بې ځایه مصروف او خبرې کوو ددې څه فائده ده؟ غیبت ده او کنه؟ که بالفرض زمونږ د استاد زوی بې لارې دی کم ترکمه مسلمان خو ده، بې لارې ده بیاپه ځانګړې ډول چې د استاذ زوی شي ددې عیب بیانول په حقیقت کې غیبت ده اوکنه؟ غیبت خو همدې ته ویل کېږي چې په یوچا کې یو عیب موجود وي اوته یې بیانوي اوداچې ته یې په حقیقت خبر هم نه وي اودبل په خوله لګیا یې، په خپله دې نه څه لیدلي، نه دې له نږدې ورسره ناسته پاسته کړې ، دده اخلاق درته معلوم نه دي، په عقیده یې خبر نه یې، تقوی او دیانت دې دده نه دی لیدلی، نوېواځې دچا په ویلو باندې په دغو غټو نسبونو پسې غړېږي او له دې سره سره دا ملګري طالبان هم وي، شاګردان یې وي، مریدان یې هم وي. مونږ په خپله دا ملګري وینو چې کله څوک داسې بې ځایه خبرې کوي نوپه هغې سره نور ملګري دېر سخت خفه کېږي، ځکه چې دا خو په حقیقت کې دخپل ځان په هکله خبرې کوي.

دا چې سړی ترقي نه شي کولای دهغې بنیادي علت زمونږ دغه پورتنۍ کمزوري ده.

حضرت نبي کریمﷺ دخپلې اولادې (سیدانو) په هکله وایي چې:
نېک یې ستاسې دي. یعنې تاسې ورڅخه فائده اوګټه پورته کړئ.
که سید عالم وي نو سبق ورڅخه وواياست، که پیر وي نو وظیفه
ترې واخلئ، دم او تعویذ پرې کوئ، یعنې تاسې ته یې ګټه
رسیږي. خو په بدو یې زه خفه کېږم. حضرت نبي کریمﷺ وایي چې
زما په اولاد کې مثلاً یوسړی د اعمالو په لحاظ کمزوری و نوکه
تاسې په دغه شخص پسې بد وایئ، دده په حق کې پوچه خوله
استعمال کړئ نوزه پرې خفه کېږم.

## درسول اللهﷺ لخوا دیوسید او بزرګ ملامتي

د یوه ولي الله واقعه په یو کتاب کې رانقل شوې ده چې: په لاره
روان وو، ډېر مریدان ورسره دي، نو یو سید هلک په مخه ورغی،
دې هلک دې ولی الله ته وویل چې: ای د بزګر زویه! تاڅه دبدبه
شروع کړې ده؟ نسب زما لوړ دی، زه سید یم او خلک په تاپسې
ډلې ډلې روان دي، نو هغه په مقابل کې ورته وویل چې: ماستا د
پلار لار خپله کړه (یعنې زه د حضرت نبي کریمﷺ په لاره روان یم)
نوځکه الله تعالی په ما کې دا خصوصیت اوخانګړتیا پیدا کړه چې
خلک مې تابع دي او تا زما د پلار لار نیولې ده (چې هغه بزګر،
دهقان او جولاوو) نو ځکه خلک درڅخه منحرف شوي دي.

د شپې دغه ولي حضرت نبي کريمﷺ په خوب کې وليد او هغه سيد هلک يې هم وېنې ، ولي الله په خوب کې وليدل چې حضرت نبي کريمﷺ ورته په غوسه او ورڅخه خفه ده، چې زما د نسب په اړه دې ولي بې ادبه الفاظ استعمال کړل، چې تا زما د پلار لاره نيولې ده چې هغه بزګر دی؟! او سيد هلک هم حضرت نبي کريمﷺ په خوب کې وېنې چې هغه ته هم په غوصه دی چې زما د دوست او ولي په حق کې دې ولې بې ادبي وکړه چې (ای د جولاز وېه) . تا څه دعوه ورسره شروع کړې وه؟

سهار دواړه يو بل ته په معذرت ور روان دي چې په مخه سره ورغلل او يو بل ته عذر کوي ، څکه خو هر يوه حضرت نبي کريمﷺ په خوب ليدلی او عتاب يې ورته کړی وو.

زمونږ د هر ملګري داسې مجلسونه کوي او زه يې ورڅخه اورم، دا خبرې ددې له پاره کوم چې زړه مې درباندې خوږېږي،له داسې بې هوده مجالسو څخه ډډه وکړئ،خپلو اعمالو اوکردار ته متوجه شئ چې يو سړی طالب هم وي اوملا هم شي داخپل ژوند په شريعت نه شي برابرولای خپل ځان نه شي برابرولای، خپل اهل اوعيال نه شي برابرولای، نو بيا ددنيا په خلکو پسې غړېدل کوم کمال ده ؟آخر ضرورت څه ده چې په غټو نسبونو اوپه استادانو کې دودی خيشنه کړې وي. د هر ملګري راځي سره له دې چې په مونږ باندې جسماني تکليف هم وي بيايې هم برداشت کوو چې که يوڅاته مو فائده ورسيږي،خوددغه مجلس نه چې دا ملګري پورته شي نوبيا وايي چې دا خليفه صاحبان داوايي ، دفلاني کار خلاف دي، د فلانکې

کار داسې دی، او حال داچې دوی به مریدان وي، شاګردان به وي، درس ته به درته را روان وي، لاس به دې مچوي، نوآیا دا منافقت نه ده چې یوځاته د شیخ اواستاد په سترګه ګورې او وروسته بیا وریسې غږېږې، کوم شرعي دلیل به هم درسره نه وي. نوداسې ملګري باید عبرت واخلي.

## د مشائخو غیبت د فیض د حِرمان سبب ګرځي

مسئله داده چې ترهغه سرې لوی دَوُس نشته چې په پیر اومرشد کې یې څوک غږېږي او دی ورته صبر کوي اودهغه غیبت ته یې غوږ نیولی وي. دیوچا په شیخ اویاهم استاد باندې طعن کېږي دی ورسره ناست وي، غوږ یې نیولی وي داډېره لویه بې غیرتي ده. ځکه قرآن کریم حضرت رسول اکرمﷺ ته وایي چې: ته له یهودو سره په داسې وخت کې مه کېنه چې دوی په قرآن کریم مسخرې کوي، ځکه که په دغه حالت کې ته ورسره ناست یې ، خپله که غیبت کوې اوکنه ، بې ادبي کوې او کنه خو چې دوی ورباندې لګیا وي نوکه د خدای تعالیﷻ عذاب راغی ته به هم ورسره ختم شي،ځکه ته هم په دغه بې دینۍ کې ورسره ګډ یې.

نو چې د استادانو او مشائخو غیبت کېږي او ملګري ورسره ناست وي نوکه دی دَوُس نه وي نو ورته ودې وایي چې نوردامجلس مه کوه. دایوه بنیادي خبره ده، ځکه چې دین له ادب څخه عبارت دی، علم ټول ادب ده، چې په دین کې بې ادبي راغله نوله سره تر

پایه یې کار خراب شو. یواځې له پیر او مرشد سره د ادب خبره نه ده، بلکې په دې خبره باندې باید سر سره خلاص کړو چې له انبیاء کراموعلیهم السلام سره ادب، له کتابونو، اولیاء الله وو، علماء کرامو، خانقاوو، مساجدو، مدارسو، لنډه داچې له هر شعائر الله سره باید د ادب پوره پوره خیال وساتل شي. اوهمدا د دین فیصله ده.

الله تعالی ﷻ فرمایي: ﴿ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى ٱلْقُلُوبِ ۝﴾ تاسې وګورئ چې بیت الله ده، د صفا مروی غونډۍ پکې دي، دمقام ابراهیمؑ په ځای تیږه ده، اوتاسې یې وینئ چې مونږ یې احترام کوو، مونږ یې په عزت کولو مامور یو، ځکه چې دا دخدای ﷻ حکم ده چې دا د دین یو شاخ ده، د دین له شعائرو څخه ده ځکه یې په احترام مامور یو. سره له دې چې هغه مکلف نه ده خودچا له وجې چې دغه ځای مشرف شوی دی نو دهغه ځای ادب په مونږ باندې فرض دی. نوبیاچې انسان دخدای پاک ﷻ دوست وي، دخدای پاک ﷻ د اولیاوو له ډلې څخه وي دهغه ادب خو په طریقهٔ اولی ضروري ده.

## د سُوءِ خاتمې (بدانجام) علامه

دا کتابي مسئله ده چې الله تعالیﷻ د یو چا د سوء خاتمې اراده وکړي نو هغه شخص به د اولیاء الله وو طعن او لعن شروع کړي، د اولیاء کرامو په طعن چې څوک بوخت شو نودا ددې نښه ده چې ددې انسان خاتمه خرابه ده. نودا مجالس بار بار اورو، دا ملګري باید له داسې مجلسونو څخه ځان وساتي، کومه فائده پرې مرتبه نه ده. که یوه دیني خبره دیو چا په ګناه پورې معلقه وي بیان یې کړئ ځه ممانعت نشته. د صحابه کرامو﷛ په باب کې د عقائدو مسئله داده چې که دصحابهٔ کرامو﷛ ګناهونه په دې نیت رانقل کړې چې ددین مسئله وریورې ترلې وي دا روا دي، مثلاً اصول وایي چې: یو سړی د واده څښتن ده اوزنا یې وکړه نودا سړی به په تیږو باندې رجم کېږي. لکه حضرت ماعز﷛ ، نوهغه دی د ضرورت له امله یې په مثال او حجت کې د صحابي﷛ عمل ذکر کړی دی. اوددغه صحابيτ په باب کې حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې: داسې توبه یې واېسته که په ټولو عربو تقسیم شي نودټولو له پاره دغه یوه توبه کفایت کوي. اوس یې ګناه پاتې ده ؟ ولې الله تعالیﷻ نه دي ویلي چې: (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُ ) نوکه ددین دیوې مسئلې اثبات پرې کوې دا صحیح ده، نور دده په شخصیت کې به مداخله نه کوې، دهغو توبه الله تعالیﷻ قبوله کړې ده، که ددین له مسئلې پرته یې

نور شخصیت بې ځایه ځبرېږ نو دا شخص بیا د اهل سنت والجماعت له عقیدې څخه وتلی دی.

د احادیثو فیصله ده چې په اسلافو (صحابهٔ کرامو ﷺ، تابعینو، تبع تابعینو) پسې بدې خبرې کوونکی انسان له (ناجیه) فرقې څخه وتلی دی او په هغو نورو (۷۲) جهنمي فرقو کې داخل دی. نو صحابهٔ کرامو ﷺ، تابعینو او تبع تابعینو څخه رانیولې تر نن عصر پورې مونږ ته د ادب حکم دی او د دې حکم پوره پوره متابعت په مونږ لازم دی. نو باید چې د دې خالیګاه ته ډېر متوجه شو.

## نېک خلک په خپلو خدمتګارانو خفه کېږي

د حضرت نورالمشائخ صاحب مبارک په وخت کې د ده مبارک د مدرسې اوښان وو، نو کله چې به یې له خلکو څخه غنم راټولول نو دغه اوښان به یې ورلېږل، هلته به خپلو خپلو علماوو دا غنم راټول کړي وو او بیا به یې مدرسې ته راوړل.

یوه کلي ته یې دغه اوښان ورلېږلي وو او کلیوالو د شپې له خوا دغه اوښان نار (ورې) تړلي وو، سهار چې هغو اوښنو غنم راوړل نو حضرت صاحب ته یې شکایت وکړ چې د فلانکي کلي خلکو زمونږ اوښانو ته خوراک نه دی ورکړی او ورې یې درولې ود نو حضرت صاحب دهغې سیمې علماء راوغوښتل او ورته په قهر شو چې تاسې مدرسه پېژنئ او اوښان یې نه پېژنئ. اوس داچې

حضرت صاحب پېژني اوخليفه يې نه پېژنئ ، حضرت صاحب پېژنم اوهغه زوی يا لمسی نه پېژنم.

څوک چې په اولياء کرامو پسې غږېږي ګستاخي او بې ادبي يې کوي نو دوی دې په دې پوه شي چې ددې مبارکانو د ګوذار او څپېړې آثار بيا تر ډېره وخته وي.

## دحضراتو لخوا ديوملاصاحب وهل

حضرت محمد امين جان آغا صاحب ماته ويل چې : په پخوا وختونو کې زمونږ په طريقت کې داسې وو چې مازديګر به مو ختم کاوه، له ختم څخه وروسته به يې غږ وکړ چې فلانکی خليفه شو اولقب يې دادی. نو يو سپين ږيری عالم و، دحضرت صاحب مريد هم وو، خوپه عام مجلس کې به يې دا خبره کوله چې ماته دا معلومه شوه چې فلانکی خليفه شو او لقب يې دا شو . نو محمد امين جان آغا صاحب وايي چې: زه د نورالمدارس مدرسې ته تللی وم، نو د شپې مې خوب ليده چې زه او حضرت صاحب مبارک د مدرسې د لويې دروازې سره ولاړ يو، نو ومې ليدل چې هماغه سپين ږيری عالم د مدرسې په دروازه راننوت، کله چې مونږ ته رانږدې شو نو حضرت صاحب ماته امر کوي چې : ﴿ بِزَن و بِکَش اين خبيث را ﴾ ويې وهه اوله مدرسې څخه دا خبيث وباسه، د طريقت رنګ يې بد کړی دی، نو دی وايي چې زه ادب کوم چې سپين ږيری عالم ده، له لاس څخه يې ونيسم چې ويې باسم، نو حضرت صاحب

بیا راته په غوصه شو چې زه درته وایم چې وهه یې اوته یې نه وهې
نودی وایي چې یو څو څپېړې مې په مخ وواهه، سهار چې راویښ
شوم نوپه هغه خاصه کوټه کې ( چې په سلام خانه مشهوره وه )
ناست یم، نوپه دغه سوچ کې یم چې دغه دې څرنګه عجیب خوب
ولید، چې هغه سپین ږیری عالم اوحضرت صاحب مرید، او دلته
ماته حکم داسې وشو چې وهه یې. ګورم چې یوڅو دقیقې وروسته
سړی راغی پارچه یې راوړه چې فلانکی عالم وفات شوی ده، تاسې
یې جنازې ته غوښتي یئ.

## دحضراتو په راتګ دزمکې ښوریدل

حضرت محمد امین جان آغا صاحب قصه کوله چې دتحریک
په وخت کې د غزني څخه راروان شو د ( ښرنې ) په لوري په یوه
دښته کې چې چول بیابان ده. څه ګورو چې د سرک په غاړه یوه
کوچۍ ښځه ولاړه ده او لرګي یې تر شا نیولي دي، کله چې مونږ
ورته راورسېدو نودا لرګي یې زما د موټر مخې ته واچول، موټروان
ته مې ویل چې موټر ودروه کېدای شي چې داسپین سرې ښځه څه
عذر ولري، موټر مو ودراوه. زه ورکوز شوم پوښتنه مې ترې وکړه
چې مورې خیریت خو به وي؟ دې راته وویل چې ما تاته مېلمستیا
کړې ده، که له ماسره ډوډۍ ته ولاړ شې، ما یوې او بلې خواته
وکتل چې نه کور اونه کلی شته،نو ماورته وویل چې مورې کور دې
چېرې دی ؟ دې راته وویل چې ددغې غونډۍ نه ها خوا. له مونږ

مره درکه (۳) موټرونه وو، نو یوځه ملګري مو دغلته پرېښودل او
نور په پښو ورسره روان شو، دوه ساعته مو په پښو مزل وکړ، هلته
چې بوې کېږدۍ (خیمې) ته ورسېدو نو له شوروا او غوښو څخه
يې ډک لوښي ايښي وو، نو ډوډۍ مو وخوړه اوبيا مې ترې پوښتنه
وکړه چې موږ ! تا عام خيرات کړی وو اوکه زمونږ په رابطه چا خبر
درکړی وو ؟ نو دې راته وويل چې کله ته له غزني څخه را روان
شوې نو خمکه په حرکت شوه ، نو زه وپوهېدم چې دحضراتو
مبارکانو يوڅوک په دې لاره را روان دی، نو مادغه تياری له
مخکې څخه درته کړی وو.

نو محترمو ملګرو که غواړئ چې سعادت مو په برخه شي نو بيا
له دغسې بې ځايه غيبت او بې هوده مجالسو نه ترڅو مو چې وس
او توان وي خان وساتئ ! اوکه نه خدای مه کړه بيابه مو دنيا او
آخرت خراب وي.

## داولياء کرامو سره دګستاخي انجام

د ديرې د علاقې يو خليفه صاحب چې حاجي هدايت الله
نومېده د قادريه سلسلې پير اوپه نقشبنديه کې دجناب شيخ
الحديث خليفه صاحب دين محمد مدظله العالی مريد دی؛ هغه
قصه کوله چې يووخت زه دخپل مرشد د ليدلو له پاره سوات ته
تللی وم اوپه خانقاه کې يې ناست وم، د مازديګر ختم مو کاوه چې
پر عالم ډېر زيات ژړل، له ختم نه وروسته ما له خپل مرشد څخه

پوښتنه وکړه چې دا عالم ولې داسې بده ورځ شروع کړې ده او ژاړې
؟ نو مرشد مبارک راته وویل چې ورشه په خپله ترې پوښتنه وکړه،
زه ورغلم او ترې ومې پوښتل، نوهغه راته په خوب کې وویل چې
زه له یو داسې استاد سره له ډېره وخته راهیسې شاګرد وم چې هغه
به د اولیاء الله کرامو بې ادبي او ګستاخي کوله او مونږ هم په دغو
مجلسونو کې ورسره شریک وو، د وخت په تېرېدو سره زمونږ دغه
استاد مریض شو اوپه اوږه ( وِلیْ ) یې غټه دانه راوختله، له دې
څخه به یې سخته تبه هم وه، دوه درې ورځې ملګرو انتظار وکړ، نو
بیا استاد راته وویل چې نور تاسې ته اجازه ده چې له ماڅخه ولاړ
شئ! نور ټول ملګري ولاړل او ما ورته وویل چې زه نه ځم، یوڅه
وخت وروسته داسې پېښه شوه چې دغه استاد به له ماښام څخه تر
سهاره پورې ډېر په تکلیف اوپه سخته تبه کې وو، ټوله شپه یې په
ړنو سترګو تېره کړه، کله چې سهار شو نو یوڅه یې سره سترګه
ورغله او ماته موقع پیداشوه اود اوبو د چینې په لورې روان شوم،
هلته مې چې له اوبو څخه لوښی ډک کړ، نو کتل مې چې د غره له
طرفه نولس ( ۱۹ ) نفره ډله راواوښته چې سپینې جامې او سپین
پټکي یې دي، ډولونه هم ورسره دي، شپېلۍ یې په خُلو کې نیولې
وې اوزما د استاد دکور په طرف ورغلل اوپه کور یې ورننوتل
نوماته ډېره سخته غوسه راغله چې ټوله شپه ناآرامه و، اوس چې
په آرام شو نو دوی ورته له ډولونو سره راغلل. نو ماورته را منډې
کړې، زه چې ترڅو ور رسېدم دوی بېرته راوګرځېدل اوپه کومه لاره
چې راغلي وو په هماغه بېرته په لیکه روان شول، زه چې استاد ته

ورتوتم ، له ده څخه مې پوښتنه وکړه چې خدای دې دوی هلاک کړي داڅوک وو چې ډولونه او شپېلۍ ورسره وې اوتاته راغلل؟ نو استاد په ژړا شو او راته یې وویل چې: دا شیطانان وو، زما څخه یې ایمان یو وړ، نوماته یې په غصه سره وویل چې: زماله کور څخه روخه ماچې ورته وکتل نو خوله یې دومره زیاته وازه شوه چې دتنه یې په ستوني کې د کفر الفاظ ښکاره شو ل، دا الفاظ ماپه خپلو سترګو ولیدل او لږ ساعت پس زما دغه استاد مړ شو.

نو زه ډېرزیات ډاریږم چې ما دخپل استاد حال ولید ، څکه ماهم داولیاء الله کرامو ګستاخي کړې ده نو څکه ژاړم.

نو باید له دغسې واقعاتو څخه سړی پند واخلي اود اسلافو او مشائخو کرامو او اکابرو سره باید چې سړی په زړه کې هم د بې ادبي نیت ونه کړي.

**وصلی الله تعالی علی خیرخلقه محمد وعلی آله واصحابه اجمعین**





# (۹) مجلس

## د ديني علماوو عقيده

نحمده ونصلي ونسلم على رسوله الكريم وعلى آله و
اصحابه اجمعين الطيبين الطاهرين

اما بعد:

په ( المهند على المفند ) نومي کتاب چې د ديوبند د اکابرو عقائد يې بيان کړي دي اود سوال اوځواب په طرز ده ، په هغې کې لومړنۍ پوښتنه د ديوبند له اکابرو څخه د طريقت په باب کې شوېده : چې د طريقت د مشائخ کرامو يا ددوی له قبرونو څخه، يعنې د ژونديو اولياء کرامو د سينو اود قبرونو د ارواحو څخه چاته څه فائده رسېدلی شي اوکه نه ؟ ددوی په بيعت کې انسان کوم کمال ترلاسه کولای شي او کنه ؟ دا بيعت ضروري ده او که يه ؟

نو دوی ددې سوال په ځواب کې ليکلي دي چې : داکابرينو د ديوبند دا رايه ده چې د اولياء کرامو له سينو او قبرونو څخه هغه څوک چې دوی ته عقيده لري، له دوی سره يې تعلق وي، نو هم يې ورته په ژوند کې فائده رسېږي او هم پس له مرګه ددوی له قبرونو

څخه فائده ورته رسیږي، ددوی د صحبت په اثر دغه انسان کمال ته رسیږي. له دې امله د دیوبند د اکابرو دا عقیده ده چې هغه څوک چې په ضروریاتو د دین خبر وي چې دا د تصوف له پاره هم شرط دی، نوچې څوک د دین له ضروریاتوڅخه خبر وي نوبیادغه شخص ته بیعت کول اوپه دې طریقه کې ځان داخلول انتهائي ضروري او ډېر مفید کار دی.

خوله داسې پیر څخه بیعت کول چې هغه له شرعي علومو څخه خبر اوپه شریعت هم برابر وي، له اسلافو سره یې مینه اومحبت وي، نوله دغسې یو مرشد سره بیعت کول ډېره ګټه لري اوکه چاته دا موقع نه پیدا کېده چې داسې یو پیر په مذکوره صفاتو سره پیدا کړي نو نفس په ښه عقیده چې په دغه طریقه کې داخل شي، یعنې له دې طائفې سره مینه اومحبت ولري داهم لوی سعادت دی، ځکه حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: ﴿ اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ ﴾ ای فی الدنیا والآخرة. انسان به په قیامت کې له هغه چاسره یوځای کېږي چې له چاسره یې په دنیاکې علاقه او مینه وه. خودا خبره ضروي ده چې مرید به هم ددین په علومو اود دین په ضروریاتو به خبر وي چې بیعت کوي هغه به هم له یوداسې چاڅخه کوي چې هغه په شریعت برابر وي.

## د اولیاؤالله وو د قبرونو ژوند دنیاوي برزخي دی

د قبرونو په هکله یې عجیبه خبر کړې ده چې دانبیاء کرامو علیهم السلام په باب کې هم د اهل السنت والجماعت اود دیوبند د بزرګانو داعقیده ده چې دوی ژوندي دي اوهمدارنګه شهداء او اولیاء الله هم ژوندي دي، خو ددوی ژوند برزخي نه دی، فقط دنیاوي ژوند یې برزخي دی. یعنې په قبرکې چې څومره خلک کېښودل شي که مسلمان وي که کافر نو دبرزخ ژوند دغو ټولو ته شته، ځکه چې د روح تعلق له بدن سره پیداکېږي، چاته به اجر او ثواب وي، اوچاته به عذاب ورکول کېږي، نودغه درک خو هرڅوک کړای شي، نوپه دغه اندازه ژوند ته برزخي ژوند ویل کېږي. دا دمسلمان اوکافر دواړو له پاره شته، چې سوال او جواب به ورسره کېږي، نو معلومه شوه چې ژوند لري ، ځکه ده ته ثواب یعنې راحت پرې ورکول کېږي، پرې پوهېږي، یا داچې تکلیف او عذاب ورکول کېږي هم وریاندې پوهېږي.

خو دانبیاء کرامو علیهم السلام ، شهداوو او اولیاء الله دنیاوي ژوند برزخي دی، برزخې ژوند په دې معنی چې مِن وجهٍ داسې ژوند دی لکه د دنیا ژوند ، په صریحو احادیثو ثابت دي چې حضرت نبي کریمﷺ حضرت موسیٰ علیه السلام ولید چې په قبر کې په لمانځه لګیا دی، داچې په قبرونوکې په لمانځه لګیا وي اوعبادت کوي دا ددغې

دنیا د ژوند حیثیت لري، وجود لري، تیتیږي، پورته کیږي، حرکات او سکنات پکې راځي. او هغه برزخي ژوند کې دا طاقت نشته چې هغه سجده کوي، یا تیتیږي پورته کیږي. یواځې لکه د لمر چې له ځمکې سره تعلق دی چې په ګرمي او یخ یې سړی پوهیږي. لمر په څلورم آسمان کې دی مونږ دلته په ځمکه کې په دې پوهیږو چې یا ګرمي ده اویاهم یخ دی.

نود امری هم دغومره په راحت او درد پوهیږي ،مګر نور د برزخي ژوند راګېډل یا تیتیدل نشته، لمونځ یا عبادت نشته، دا د دنیاوي ژوند خاصیت دی.

خو له دې سره سره بل طرف ته ددغو مبارکانو ژوند برزخي هم ده، خوراک، څښاک او قضاء حاجت نشته، دغه ژوند ته بیا ددوی حاجت نشته. نو چې ددوی یوځل دنیاوي برزخي ژوند شو ، لکه په دنیاکې چې ژوندي وي ، خلکو ته یې ګټې رسیږي، ددوی په مجلس، په توجه ، په صحبت، ددوی په دعاګانو ډېر کارونه جوړیږي، همدغسې په قبر کې یې هم فائدې رسیږي، ځکه ژوند یې ددنیا دژوند په حیثیت شو.

## له چاڅخه چې په ژوند کې د فائدې توقع وي نو پس له مرګه هم شته !

لکه مرقات شرح مشکوة ، احیاء العلوم ، فتاوی واحدیه؛ دا ټولې لیکي چې که له چاڅخه په ژوند کې د فائدې اوګټې اخیستنې توقع وي نو پس له مرګه هم ترې توقع کېدای شي. مونږ

چې يوځای ته ورځو دا اميد او عقيده لرو چې دده ددعا په برکت به زمونږ دا مشکل خدای تعالیﷻ حل کړي، دده په صحبت او مجلس به خدای پاکﷻ مونږ اصلاح کړي. داچې په ژوند کې يې دا فائده رسيږي، نو کتابونه ليکي چې پس له مرګه يې هم دغسې فائدې رسيږي. وجه يې داده چې داسې ژوند يې دی لکه دغه دنياوي ژوند. خو ورسره برزخي ژوند ملکري شوی دی، له دې امله لکه په ژوند کې چې د حضرت رسول اللهﷺ په حضور کې کوم آداب ترسره کېدل نو پس له مرګه به هم همغسې آداب وي او بيا همدغسې له اولياء الله (رحمة الله عليهم) سره.

په دغه سلسله کې چې دغسې سړی حضرت نبي کريمﷺ مبارک زيارت ته ورځي آيا د حضرت نبي کريمﷺ د زيارت نيت به کوي اوکه دجومات؟ وهابيان وايي چې مدينې منورې ته تګ يواځې او يواځې د جومات په نيت روا دی اود حضرت نبي کريمﷺ د زيارت نيت به نه کوي! ځکه چې په هغه ﷺ کې خو ژوند نشته. هغهﷺ له دنيا څخه نقل شوی دی.

دوی په دغه حديث مبارک دليل نيسي: (لَا تشدُّوا الرحَالَ الاَّ الٰی ثلثةِ مَسَاجِدَ) يعنې دريو مسجدونو ته تګ شته چې مکه معظمه (مسجد حرام) مدينه منوره (نبوي مسجد) بيت المقدس (مسجد اقصی) نود جومات په نيت به نبويﷺ مسجد ته ورځي. نه د زيارت په نيت.

مگر زمونږ د اهل السنت والجماعت د دیوبند د علماء کرامو دا عقیده ده چې هلته به خاص د زیارت په نیت ورځي، پاتې شو د جومات فضیلت هغه تبعاً دی، چې هلته سړي ته پیداکېږي خو قصداً به د زیارت په نیت ورځي. ځکه چې حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: ( څوک چې ماته زما د زیارت په نیت راشي یعنې د جومات په نیت رانه شي نوزما شفاعت دهغه په حق کې واجب دی.

)

وایي د جومات نیت دې هم ورسره وشي، دا خوڅه ناروا نه ده، داجومات ته چې شرافت الله تعالیﷻ ورکړی د څه له امله یې ورکړی؟ دایې دحضرت نبي کریمﷺد مبارک وجود له امله ورکړی، وایي هغه خاوره چې ددهﷺ له مبارک وجود سره نښتې ده تر کعبې شریفې او عرش څخه بهتره ده، نوهغه خاوره خو اوس هم په هغه جومات کې شته. نودا شرافت چې د حضرت نبي کریمﷺ دوجود مبارک څخه دده په حیات کې دغه جومات ته خدای پاکﷻ ورکړی رو نوددهﷺ له انتقال نه وروسته هم هغه وجود مبارک خو یې په هغه ځای کې موجود دی.

حضرت عبدالرحمن جامي رحمه الله چې یو لوی ولي تېر شوی دی کتاب لیکلي دي چې یو کال په دغه کال باندې چې ده حج کاوه، نو مدینې منورې ته نه ولاړ ، دوهم کال بیا مستقل دمدینې منورې په نیت ولاړ ، د حضرت نبي کریمﷺ د زیارت نیت دومره مفید ده. نوکله چې په دویﷺ کې هغه حیات دی نوزیارت ته هم په دغه نیت باندې تلل دي.

## د زیارت په وخت کې به مخ کومې خواته کول پکار ده؟

کله چې یو څوک روضې مبارکې ته درېږي نو مخ به د قبلې په لوري ګرځوي او که مخ به یې د زیارت طرف ته وي ؟ نو په دې ځای کې یې زموږ د احنافو فقهي علماوو یو قول داسې دی چې مخ به د کعبې شریفې په لوري وي او شاه به ده ﷺ ته ګرځوي، خو له دې سره دا هم بیاوایي چې : احسن ، اصح او افضله خبره داده چې مخ به روضې مبارکې ته ګرځوي. اوس هلته په مدینوره منوره کې وهابیان سړی نه پرېږدي چې د حضرت نبي کریم ﷺ زیارت مبارک ته مخ کړي. او وایي چې دا شرک دی.

خو د احنافو دغه عالم بیا وایي چې دا بې ادبي ده چې څوک شا زیارت ته کړي، حتی دغه کتاب د امام صاحب رحمه الله واقعه رانقل کړېده چې: کله امام صاحب رحمه الله روضې مبارکې ته ولاړ نو ده ته په دې خبره کې اشتباه وه چې اوس مخ روضې مبارکې ته کړم او که کعبې شریفې ته . کوم عمل افضل ده؟ نو په دې وخت کې مشهور فقهي عالم ( شیخ احمد سجستاني ) چې له امام صاحب څخه په طبقه کې مشر و هغه راغی . کله چې امام صاحب هغه ولید نو ویې ویل چې ده ته به ګورم چې دی څه کوي ؟ کله چې یې هغه ولید نو هغه خپل مخ روضې مبارکې ته ګرځولی وو، دعایې کوله ، نو امام صاحب هم دا فیصله وکړه چې دا افضل ده چې مخ به روضې مطهرې ته کوي او شا به کعبې شریفې ته ګرځوي. نو دده ﷺ

له روضې سره هم هغه ادب ضروري ده کوم ادب چې له ده ﷺ سره په حالت د حیات کې کېده.

دا خبره د موجوده وخت د وهابیانو له پاره یو بهترین تردید ده چې د امام صاحب اوهغه لوی عالم په قول ثابت اود لوی عالم مشهور شخصیت عبدالرحمن جامي رحمه الله مستقل د زیارت په نیت احرام تړل دي. نو هلته په روضه مبارکه کې بهتره خبره داده چې هلته ورته مخامخ ودریږي. د دعا او التجاء اوعاجزۍ په حالت کې به دا عقیده وي چې حضرت نبي کریمﷺ ژوندی او انبیاء کرام علیهم السلام ،شهدا او اولیاء الله ژوندي دي او دقبر ژوند یې دنیاوي برزخي ده. په دې دنیاکې یې چې چاته د دعا په وسیله ګټه رسېده نو پس له مرګه هم دغسې هغه التماس او دعاګانو باندې ورته ګټه رسیږي.

## وسیله

همدارنګه یې د وسیلې په باب کې هم خبرکړې ده چې که په دعاکې یوڅوک وسیله نیسي دا څرنګه ده ؟ نو ویلي یې دي چې د حضرت نبي کریمﷺ، شهداوو او اولیاء الله کرامو په وسیله دعا لکه یوڅوک چې زیارت ته ځي په دې نیت چې هغه وسیله وګرځوي نوپه دې کې د اهل السنت والجماعت دا عقیده ده چې په دې طریقې سره الله تعالیﷻ د انسان دعاوې ښې قبلوي. داسې چې ستا دغه نېک بنده چې تاته ډېر ګران دی نو ای خدایه ! دده په وسیله زما دغه مشکل راته آسانه کړې، نو توسل بالذوات الفاضلة

هغه وسیله کول په دعا کې په خپل ځای کې وي اوکه زیارت ته ځوک ولاړ شي ، په هرآن کې چې وي نوددغو په وسیله خدای پاکﷻ د انسان مشکل حل کوي.

لکه دا د شجرو سلسلې چې په ځو قسمه لیکل کېږي، یو قسم شجرې چې دلته په پاکستان کې ډېرې رواج دي . په داسې عنوان سره وي چې: ( الهي بحرمتِ فلان ) د اولیاء کرامو نومونه یې د ( به حرمت ) له تکي سره وي، له خپل مرشد نه نیولې آن تر حضرت نبي کریمﷺ پورې ټول اولیاء کرام واسطه ګرځوي ( الهي به حرمت فلان ) یعنې خدایه د فلانکي په عزت اوشرافت زما دا مشکل ته راته حل کړې. نودا ټوله سلسله د توسل په نیت ویلو او واسطه ګرځولو سره بیاپه ذکر کې ډېر اثر پیداکېږي. د شجرو په سر باندې یې دا آیت هم لیکلی وي چې: (يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱبۡتَغُوٓاْ إِلَيۡهِ ٱلۡوَسِيلَةَ ). نودخدایﷻ مقرب بنده اودوست ده ته وسیله ګرځوو.

حضرت نبي کریمﷺ چې کله حضرت جبرئیل؈ د الله تعالیﷻ طرف ته ولېږه نو خضرت جبرئیل؈ وایي چې زه د حضرت نبي کریمρ له طرف نه الله تعالیﷻ ته ور روان وم په دې وار زه ترټولو وارو ځخه الله تعالیﷻ ته ډېر ورنږدې وم اوحکمت یې هم دا وو چې دمحبوب د طرف نه ورغی طرف د محب ته چې الله تعالی ﷻ ده، نود محبوب د قاصد هم محب عزت کوي. نوداچې دده دوست او ولي ده ځکه یې ته ورته مخته کوي.

لکه په دنیاکې هم دغه دستور ده چې کله غټه مشکل پېښ شي،د قتل معامله وي ، نو مشائخ ، علماء او سپين ږيري عزتمن خلک ورته ورولي ، هغه سړی ورته تر خپلې بدۍ تېر شي ترهغه خپل لوی تاوان ورته تېر شي. ولې ؟ ددغو ښکو خلکو له امله. نو بنده د بنده دومره عزت کوي دده د شرافت له امله، نوداچې دخدای پاکﷻ دوست وي خدای پاکﷻ ته يې وسيله کړي چې ای خدايه ستا ددوست په برکت، ستا د شهيد په برکت،ستا د عالم په برکت ،ستا د کعبې په برکت، يعنې څومره چې د عزت خلک اوځايونه دي ددغو په برکت زما دغه مشکل حل کړې، نودوی دې ورته تواتې مخته کړل نوبياخدای پاکﷻ دهغو خلکو سفارش قبلوي. حضرت نبي کريمﷺ وايي چې که ماته څوک زما دزيارت په نيت راځي نو زما شفاعت ورته واجب ده، خامخا به يې شفاعت کوم ، نوپه چا پورې چې دې لاس ونيوه هغه بياخدای پاکﷻ ته التجا کوي.

اولياء الله چې په کوم حالت کې توجه کوي نو دوی په حالت د التجاء کې وي، داپه خپل کمال د چا وظيفې نه پخوي. داپه خپل کمال دچا بېکاره اخلاق نه شي لرې کولای. په خپل کمال دچا د باطن تصفيه نه شي کولای. عين د توجه په حالت کې چې شرط هم داده چې کله پير مريد ته توجه کوي نوخپل اکابر به الله تعالیﷻ ته وسيله ګرځوي اوخدای تعالیﷻ ته به دعا کوي چې ای الله ! زما د شيخ په برکت ددغه انسان د سينې کدورات لرې کړې. نوپه هغه توجه بيا دومره کار وشي.

حضرت مجدد الف ثانی صاحب قدس الله سره فرمايي چې: ( يک توجه کارِ سنين ميکند ) يعني په يوه توجه سره د کلونو کلونو کار کېږي. دا ولې ؟ ځکه چې د خدای تعالیٰ ﷺ دوست دي هغه ﷺ ته شفيع کړ، رابطه دې ونيوه ، هغه دې ورته وسيله کړ.

## د مشائخو کرامو په رابطه څومره مُهم کار کېږي ؟

ماته يوه خليفه صاحب قصه کوله چې: زه چې چاته توجه وکړم نو توجه په حالت کې ماته د مشائخو رابطې راځي، حتی زه تر هغې مريد ته وظيفه نه ورېدلوم ترڅو يې چې په هغو مشائخو کې څوک ورېدله نه کړي. عين د توجه په حال کې د هغو رابطه نيسم، چاته يې مجدد صاحب قدس سره ورېدله کړي، نوزه يې هم ورېدله کړم، چاته يې شاه نقشبند مبارک ورېدله کړي نوزه يې هم ورېدله کړم حاصل د خبرې داده چې دوی هغه مشائخ کرام په رابطه کې نيسي.

يو وخت د زرمت قطب المشائخ صاحب رحمه الله ته يو ماشوم چا د دم له پاره راووست، ده ورته د دم په ځای وظيفه ورکړه، نو روان شو، چا ورته وويل چې صاحب ! دا خوېې د وظيفې اخستلو له پاره نه وو راوړی بلکې دم ته يې راوړی و؟ نو قطب المشائخ صاحب مبارک ورته وويل چې: ما د وظيفې په حالت کې روحاني صاحب ته حواله کړ، د هغه رابطه مې ونيوه، نوزما له دم نه د حضرت روحاني صاحب قدس سره دم ډېر مؤثر دی.

سړی چې فکر وکړي نو د نقشبنديې طريقې يو خصوصيت دا هم دی چې ددوی په توجه باندې، ددوی په برکت له مريض څخه الله تعالی ﷻ مرض ختموي، دهغې وجه دا وي چې هلته د الله تعالی ﷻ لوري ته التجاء وشي ، مشائخ کرام ورته واسطه شي. مونږ زيارت ته ولاړ شو ، نو کله خدای پاک ﷻ ورته د هغه په وسيله شفا ورکړي کله له دم سره شفاء ورکړي، کله کار تر ډاکټر پورې معلق وي.

## د نيکو خلکو په يوه توجه د بډوګې تيږه ماتيدل

يو نفر ماته قصه کوله چې : د هجرت په ابتداء کې مونږ په (بنو) کې اوسېدو، زمونږ په کور کې ديوه مريض په پښتورګي کې تيږې وې، يو خليفه صاحب زمونږ مېلمه و، نو په کور کې وتل ننوتل شروع شول، نو خليفه صاحب وويل چې: څه خبر ده ؟ مونږ ورته وويل چې په کور کې مريض ده، په بډوګي (ګرده) کې يې تيږه ده، ډېر په تکليف کې ده، خليفه صاحب وويل چې تاسې يې دلته راولئ ، هغه سړي قسم کاوه چې مونږ ناست وو توجه شروع شوه، ددغې توجه په حالت کې د تيږې (ټک) مونږ په خپلو غوږو واورېده، نو خليفه صاحب وويل چې تيږه ماته شوه، کله مو چې اکسيره واخسته نو په هغه کې د تيږې په ځای يواځې زخم و او بس. يواځې مو ورته د زخم دوا واخسته نو هغه تيږه ختمه شوه. نو دا بالمشاهده پېښې دي.

## دسراج المشائخ صاحب په توجه دیوطالب دخولې دبدبویي ورکیدل

د یوه طالب له خولې څخه به ډېر سخت بوی تلو. نو جناب سراج المشائخ احمدضیاء خلیفه صاحب ته راغی او هلته لږ په یوه ګوټ کې کېناست، هغه ورڅخه پوښتنه وکړه چې ولې دومره لرې کېناستې؟ ده ورته څه ونه ویل، بل ملګري يې ورته وویل چې صاحب! دده له خولې څخه بدبويي ډېره ځي نو ځکه مجلس ته نه رانږدې کېږي، نو خلیفه صاحب ورروغوښت ، کله چې يې توجه ورته وکړه هغه مرض يې له بېخه ورک شو، تر ننه پورې ورک دی، نودا دعقیدې مسائل دي، چې ددغو خلکو په حیات به سړی عقیده لري، اودابه عقیده وي چې ددوی فائده سړي ته رسیږي. نو زمونږ او ستاسې دا عقیده ده چې حضرت نبي کریمﷺ حیات ده، دهغه له زیارت سره ادب او د اولیاء الله وو او شهداوو سره ادب انتهائي د ضروریاتو له جملې څخه ده.

لکه ددیوبند اکابر چې لیکي: چې که په دغسې صفاتو متصف پیر څوک پیدا نه کړي هم چې یواځې په عقیده په دغه طریقه کې شریک شي هم فائده يې ورته رسیږي، یواځې چې احترام ولري هغه هم کافي دی.

خو که مخالفت او انکار وي نو بیاخو د حضرت نبي کریمﷺ په ژوند کې له دهﷺ سره نږدې کفار اوسېدل، ایمان او باور یې نه درلود، نو یواځې د حضرت نبي کریمﷺ وجود مبارک ورته څه فائده ورکړه؟ دیﷺ په خپله هم موجود و، معجزې یې هم موجودې وې، مگر ددوی له لوري چې انکار وو نو فائده یې ورته ونه رسېده.

دپاچې عقیده وه چې ددنیا په بل سر کې و هم ایمان یې ورباندې راووړ نو ابدي سعادت یې په برخه شو. ځکه دا دعقیدې فائده وه. او دپاچې عقیده نه وه لکه عبدالله بن ابی بن سلول منافق چې په هر مجلس کې به له حضرت رسول اللهﷺ سره ناست وو، خو له دې سره سره رسول اللهﷺ ته هېڅوک دومره مبغوض نه وو لکه دی. نو د پیغمبر صلی الله علیه وسلم وجود هم یواځې فائده نه ورکوي چې سړی په خپله عقیده ونه لري، اخلاص پیدا نه کړي، نود ولي وجود به څه فائده ورکړي.

داچې عقیده برابره شوه، اعتقاد جوړ شو، بیا د نبي په صحبت اولیاء شول، په یوه یوه صحبت اولیاء الله شول، په ټولو تابعینو کې بهترین تابعي د ادنا صحابي مرتبې ته نه شي رسېدلای. او چې کله عقیده نه وي نومنافق په کلونو کلونو عمر ورسره تېر کړی وي خو هېڅ فائده یې ورته نه وي رسېدلې.

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا و مولانا محمدوعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

# (۱۰) مجلس

## شقاوت او سعادت

### (بدبختي او نېکبختي)

(فَمِنۡهُمۡ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ)

قدرمنو مسلمانانو وروڼو!

الله تعالیٰ ﷻ په خپل کتاب مبارک کې د انسانانو حالت بیانوي چې انسانان په دوه قسمه دي: ځینې بدبخته دي او ځینې انسانان نېک بخته دي، بیا الله تعالیٰ ﷻ دبدبختو ځای هم راښیي چې ځای یې جهنم ده او په جهنم کې به ددوی له پاره سخت آوازونه، ژړاوې او فریادونه وي. اود نېک بختو حال هم ذکر کوي چې دهغو له پاره جنت اود جنت انعامات او لوی لوی راحتونه دي.

په دې کې غرض داده چې مفسرینو کرامو د نېک بخته او بدبخته نښې او علامې بیان کړي دي چې: نېک بخته اوبدبخته چاته ویل کېږي، دا د نېک بختي او بدبختي فیصلې خو ازلي دي، خوددې له پاره چې په ظاهره سړی وپوهېږي چې دا سړی نېک بخته یا بدبخته دی نودابه په څه معلوموي؟

# نېکبختي او د علامې يې

د نېک بخته سړي علامې مفسرينو کرامو چې ښودلي دي هغه يوولس دي:

۱۔چې له دنيا څخه بې رغبته او رغبت يې د آخرت لور ته وي.

۲۔همت به يې عبادت او د قرآن کريم تلاوت طرف ته وي.

۳۔خبرې به کمې کوي.

۴۔د پنځه وخته لمانځه حفاظت به کوي.

۵۔له حرامو او شبهاتو څخه به پرهېز کوي.

۶۔راشه درشه او تعلق به يې له نېکانو سره وي.

۷۔عاجزي به کوي ، متکبر به نه وي.

۸۔سخي او کريم به وي.

۹۔د خداى په مخلوق به رحم کوي.

۱۰۔خلکو ته به فائده رسوي.

۱۱۔مرګ به ډېر يادوي.

# بد بختي او علامې يې

د بدبختۍ علامې يې هم يوولس ښودلي دي:

۱ ـ دمال په جمع کولو کې به حريص وي.

۲ ـ ټوله توجه او فکر به يې د شهواتو په پوره کولو کې وي.

۳ ـ بد ګوی او غيبت کوونکی به وي.

۴ ـ په لمانځه کې به سستي کوي.

۵ ـ ملګرتيا او تعلق به يې له بدو خلکو سره وي.

۶ ـ بد اخلاقه به وي.

۷ ـ کبرجن او فخر کوونکی به وي.

۸ ـ خلکو ته به فائده نه رسوي.

۹ ـ په مسلمانانو به رحم نه کوي.

۱۰ ـ بخيل به وي.

۱۱ ـ مرګ به يې هېر وي. يعنې چې سړی د مرګ يادوونکی وي نودی به خلک له اطعام الطعام نه نه منع کوي. او په مسلمانو سړيو اوښځو به رحم کوي.

## فائده

په آخر کې بیا د فائدې په ډول ذکر کوي چې: که څوک د خدای تعالی له دوستانو سره ناسته او ولاړه لري خو سره له محبت او اخلاصه اود نااهله خلکو ، دخدای پاک له دښمنانو او منافقانو کافرانو سره دده تعلق نه وي نو وایي چې انشاء الله دغه سړی به کامل ولي جوړیږي. دده التزام له هغو نېکو خلکو سره وي ، همېشه دهغو په مجلس کې شرکت کوي ، ځکه په مجلس کې ډېر لوی اثر وي، د مخکنیو علماوو اولیاوو الله وو تاریخ ته چې څوک نظروکړي اکثره ډېر بې لارې خلک د نېکو مجلسو په برکت خدای پاک د اولیاوو له ډلې څخه ګرځولي دي.

## دنیکو خلکو په مجلس انسان ته دولایت مقام حاصلیږي

حضرت حبیب عجمي چې دخپل وخت یو لوی سرمایه دار اولوی سودخور وو ، له هرچا سره دده د سود معاملې وې او روزانه به به خپلو قرضدارانو پسې ګرځېده ،له هغونه به یې خپل پورونه او دهغې ګټه غوښتله ، هغه ګټه به یې په خپل کور مصرفوله خپله اصلي سرمایه به یې نه مصرفوله ، حتی که هغه سړي به عذر ورته وکړ چې ښځې په کور کې هېڅ شی نشته بیابه هم تش ورڅخه نه راته،یوڅه شی به یې بیاهم ورڅخه راووړ ، حتی د اور د بلولو لرګي به یې هم ورڅخه راوړل.

خودغه حبیب عجمي چې بیاکله دحضرت حسن بصري قدس سره په مجلس کې شریک شو دهغو پاکو مجلسونو اود خدای پاک د دوستانو د تعلق په برکت یې بیا له سود اوګناهونو نه توبه واېستله ،وروسته بیاددومره غټ مقام څښتن شو چې دخدای پاک ﷻ د عظیم الشانه اولیاوو له جملې څخه وګرځېده. له حضرت حسن بصري رحمه الله څخه به یې سبق وایه اودهغه په مجلس کې به شریکېده.

خو یو وخت بیاداسې پېښه وشوه چې : حضرت حبیب عجمي را روان ده څه ګوري د دریاب په غاړه حضرت حسن بصري رحمه الله ولاړ ده، حضرت حبیب عجمي رحمة الله علیه چې ورته راورسېده ورته یې وویل چې: ولې ولاړ یې ؟ هغه ورته وویل چې: کشتۍ ناوخته شوه ، کله چې کشتۍ راشي نوبیابه په کشتۍ کې سپرېږم اود دریاب هغې بلې غاړې ته به اوړم. حضرت حبیب عجمي صاحب ورته وایي چې: د مسلمانانو له حسد نه زړه سپین کړه ، له دنیا نه زړه سوړ کړه ، دخدای پاک په قضا باندې راضي اوسه ، دخدای پاک له طرف نه چې کوم بلیات او آفات درته متوجه کېږي په هغو باندې صبر کوه (راضي بالقضا ) شه اوپښه په دریاب کېږده او روان شه.

حضرت حبیب عجمي رحمه الله روان شو پورې ووت. کله چې حضرت حسن بصري رحمه الله دا حال ولیده بې هوښه شو ، وروسته چې کله په حال شو چا ورڅخه پوښتنه وکړه چې ولې دریاندې بې هوښې راغله ؟ ده ورته وویل چې: حبیب عجمي علم له

ماشخه زده کړی ، خو نن یې زه ګرم کړم ، که صبا د قیامت په میدان کې د پُل صراط په ځای بیاداسې پښتنه وشي چې دی دخدای پاکﷻ په دوستي باندې پورې وځي او زه هلته پاتې شم نودا خو زما له پاره د افسوس اوهلاکت ځای ده.

کله چې حبیب عجمي سره بهرته یوځای شو نو له هغه څخه یې پوښتنه وکړه چې : تاته دغه مقام خدای پاک ﷻ په څه شي درکړ ؟ ده ورته وویل چې: دا له دې وجې نه چې زه زړه صفا کوم اوته کاغذونه توروې یعني په کاغذونو مسائل لیکې! او زما ټول کوشش د زړه په صفا کولو باندې ده، ځکه خدای پاکﷻ دا مقام راکړی، نوده ورته وویل چې: ( علمي نفع غیری ) زما دعلم فائده بل چاته ورسېدله ، ماته یې څه ګټه ونه رسېده.

خو دادې هم څوک نه وایي چې دحضرت حبیب عجمي رحمه الله رتبه تر حضرت حسن بصري رحمه الله لوړه شوه، داسې نه ده، بلکې هغه یې شاګرد ده، هغه عابد و اوحسن بصري عالم و، او معلومه خبره ده چې عالم ته الله تعالی لوړه درجه ورکړې، ځکه چې رسول اللهﷺ سره له دې دومره لوړې درجې چې ترټول مخلوق غوره اوبهتر دی هغه ته هم الله تعالیﷻ فرمایي چې: ( وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا ) چې که ته له ماڅخه سوال او غوښتنه کوې نودا سوال کوه چې ای خدایه ! علم مې زیات کړې، که په دنیاکې یو بل څه محبوب وای نوبیابه خدای پاکﷻ خپل محبوب ته دهغه حکم کاوه چې دغه

شي راڅخه وغواړه. نو معلومه شوه چې له هرڅه نه د علم درجه لوړه ده، ځکه ورته وايي چې له ماڅخه دعلم دزياتوالي غوښتنه کوه.

کرامات چې پيدا کېږي دا له ډېر عبادت څخه پيدا کېږي، اوکرامت د ولايت څوارلسمه حصه ده، په کراماتو باندې د انسان مرتبه دومره نه پورته کېږي لکه څومره چې په اسرارِالهي باندې ( چې الهي علم ورته حاصل شي ).

ددې مثال لکه په انبياوو عليهم السلام کې د حضرت سليمان ، داد الله تعالی ﷻ پيغمبر دی چې هوا، ورېښې، پېريان، مرغان، دېوان دا ټول دده د امر تابع دي، دده هغه غټ تخت چې ټوله کابينه به يې هم ورسره وه، په هوا به روان و، مگر حضرت موسی ته چې د علم کوم اسرار معلوم اوحاصل و، حضرت سليمان دحضرت موسی تابع و، مطلب داچې دحضرت سليمان مرتبه له حضرت موسی څخه کمه وه، سره له دې چې کرامات يې څومره ښکاره دي؟ خوداچې الهي علم له حضرت موسی سره زيات و، دواړه پيغمبران وو خو په رتبه کې حضرت موسی له ده څخه زيات دی.

اصل مې غرض داده چې د ښکو خلکو په صحبت سړی نيک مقام ته رسېږي.

## د نیکو خلکو په دعا یو قاتل جنت ته داخل شو

یو قاتل چې ناحقه یې څوک وژلي و، دهغه وخت حکومت دی بندي کړ، وروسته یې دی اعدام (پهانسي) کړ، په کومه ورځ چې دی په دار وځړول شو نو چا په خوب کې ولیده، چې دغه قاتل په جنت کې دی، نو پوښتنه یې ورڅخه وکړه چې ته خو قاتل او ظالم یې څرنګه په جنت کې ګرځې؟ ده ورته وویل: زه یې چې دار ته ځړولم نو حضرت حبیب عجمي رحمه الله په دغه لاره باندې تېرېده، نو کله یې چې په ماباندې سترګې ولګېدې نو زما له پاره یې د مغفرت دعا وغوښته چې: خدایه! ته ورته مغفرت وکړې، دهغه د دعاوو په برکت کله چې له اعدام څخه وروسته مې روح قبض شو نو روح مې جنت ته ولاړ. اودا څکه چې د نېکو خلکو ارواح (علیین) ته ځي، چې هغه د عرش عظیم لاندې په جنت کې یوځای دی. نو ګورئ ددې بزرګانو د یوې دعا په برکت الله تعالی ﷻ انسان ډېرو لوړو مقاماتو ته رسوي.

## دحضرت نجم الدین کبری یو نظر په حیوان هم اثر وکړ

حضرت نجم الدین کبری قدس الله سره یوداسې شخص دی چې: دی به کله د جذب په

حالت کې راووت نوپه چا به یې چې سترګې ولګېدې هغه به د اولیاء الله وو له ډلې څخه شو.

یو وخت دی په مجلس کې د (اصحاب کهف) واقعه ذکر کوي نو د (اصحاب کهف) د سپي واقعه خبره راغله، په ناستو مریدانو کې یوچاته په زړه کې دا وروګرځېده چې په اوس وخت کې به هم داسې یوڅوک وي چې دده په ملګرتیا سپی هغه مقام ته ورسیږي؟ لکه کوم مقام چې د (اصحاب کهف) سپي ته په برخه رسېدلی دی؟ څکه په قرآن کریم کې یې یادونه راغلې چې: (وَ كَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيْدِ) درې سوه نهه (۳۰۹) کاله چې اصحاب کهف په هغه ځای کې مړه پراته و، بدنونه یې خراب نه شول، هغه سپی هم په هغه کیفیت پروت و، بدن یې خراب نه شو اود قیامت په ورځ به د انسان په شکل جنت ته داخلیږي.

نو خبره مو د مرید کوله چې دهغه په زړه کې سودا تېره شوه. نو حضرت نجم الدین کبری قدس الله سره چې کله د باندې د جذب په حالت کې راووت نو یې په سپي باندې سترګې ولګېدې ،دغه سپی چې هره ورځ به دغلته ګرځېده، له دې ځای څخه ورک شو، وروسته یې چا پوښتنه وکړه چې هغه سپی څه شو؟ نو چا ورېل چې دا دومره وخت کېږي چې خوراک، څښاک یې پرې ایښي دي او هره ورځ په یوه دښته کې پروت، څلوېښت، پنځوس سپي نور هم ورڅخه شاوخوا حلقه وي او ټول پړمخې پراته وي،لکه د ذکر په حالت کې.

نو ددوی په یو نظر خدای پاک سپي داسې مقام ته رسوي، خو
ګوري دا دخدای پاکﷻ ورکړه ده، الله تعالیﷻ د خپلو ذخیرو د
تقسیم ،دهغو د وېش اختیار چاته نه ورکوي، خو کله چې چاته
اختیار ورکړي نوبیا خدای پاکﷻ دهغوی په واسطه د یو چا
کارونه ورته جوړوي.

حضرت نبي کریمﷺ یو اصحابيؓ ته وایي (سَلْ تُعطَ) غواړه
چې درکړل شي،دغسې ډېرې پېښې شوي دي چې په یوه دعا
دخلکو پوره کارونه جوړ شوي دي. ځکه ددغو خلکو له الله
تعالیﷻ سره نږدې علاقه وي، بیاچې دوی خپل ربﷻ ته التماس
وکړي ، لاسونه پورته کړي، نود خدای پاکﷻ په خزانوکې کمی
نشته، بیا خداوند متعالﷻ دخپل دوست سوال او غوښتنه په
ځکه نه غورځوي. چې په دنیاکې چا جرم کړی وي ، عزتمن خلک
په تواتې هغه جانب مقابل لوري ته ورشي، نو دهغو عزتمنو خلکو
له مخې هغه سړی شرمیږي. د قتل معامله هم وربښي. غټ غټ
ظلمونه شوي وي هغه هم ور وبښي.

نود الله تعالیﷻ دوستان چې خدای پاکﷻ ته جرګه شي، هغه ته
واسطه شي، دا شفاعت ده. د قیامت په ورځ چې انبیاء علیهم
السلام، شهیدان، علماء ، حافظان، اولیاء الله ، شفاعت کوي،
داځکه چې دوی الله تعالیﷻ ته نږدې وي، نو الله تعالیﷻ ته دوی
سوال وکړي چې ای خدایه ! که دی هرڅومره ګناهکار ده، خو دده
په حق کې زه درته سفارش کوم، له ماسره یې ښېګړه کړېده، زما
یې خدمت کړی، له ماسره یې معاونت کړی، له ماسره یې محبت

کړي، ستا له دین سره یې محبت کړي، ستا له دوستانو سره یې محبت کړي، نو الله تعالی ﷻ د خپل محبوب سوال قبول کړي.

همدارنګه قرآن کریم شفاعت کوي، که هرڅومره دغه بنده ګناهونه کړي وي، دغه قرآن کریم دخدای پاک ﷻ په حضور کې سفارش کوي، چې ای خداوند متعال! زه ستا کلام یم، ددې بنده له ما سره مینه او علاقه وه، که ده ګناه کړې هم وي، ته ورڅخه تېر شه. نو لکه څرنګه چې په آخرت کې شفاعت ثابت ده، ددوی په برکت خدای پاک ﷻ انسان له جهنم اونورو عذابونو څخه خلاصوي، چې هغه د دنیا له عذابونو او مصیبتونو تولو څخه ډېر سخت دي، د دنیا تکلیفونه خو د آخرت په نسبت ډېر کم دي، ددغو خلکو د دعاوو په برکت له سړي څخه د دنیا مشکل هم لرې کوي.

خودا هرڅه محبت، اخلاص، متابعت او انقیاد غواړي، که یوڅوک غواړي چې د اولیاء الله له جُملې څخه وګرځي، نو شرط د ولایت داده چې دده به له اولیاء الله سره مینه،محبت، اخلاص اودهغوی د حکم مننه وي، چې هغه څه ورته وایي هغه به مني، دوهم به ذکر ډېر کوي، دا دواړه شیان چې سره یوځای شول نوبیا ددغه سړي د الله تعالی ﷻ سره دمحبت لار خلاصیږي. بیاد خدای پاک ﷻ له اولیاوو څخه حسابیږي. ﴿اِنْ اَوْلِیَآؤُهٗ اِلاَّ الْمُتَّقُوْنَ﴾ د خدای پاک ﷻ اولیاء نه دي،مګر هغه څوک دي چې پرهېزګاره وي، د پرهېزګاري دا لاره ده چې له نېکانو سره به په مجالسو کې اشتراک کوي، دهغوی نېکې خبرې به اوري، هغه په ده کې اثر وکړي، نوبیا

دی له ګناه څخه اجتناب شروع کړي، له دین سره یې محبت پیدا شي، د دین په کارونو کې کوښښ شروع کړي، څومره یې چې کوشش زیاتیږي دغومره بیا خدای پاک ﷻ ته ورنږدې کیږي. څومره چې تقوی زیاتیږي دغومره دخدای پاک ﷻ دهغو مقربو بندګانو له جملې څخه حسابیږي.

اوکه یوڅوک له نااهلو خلکو سره مجلسونه کوي، بیادهغوی مجالس پکې اثر کوي، ورځ په ورځ به [ خدای مو دې وساتي ]د خدای پاک ﷻ په دښمنۍ کې پسې سختیږي. خدای پاک ﷻ فرمایي: ﴿وَلَا تَرْكَنُوٓاْ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ﴾ د ظالمانو، کفارو طرف ته د زړه میلان هم مه کوئ بیابه تاسې هم په جهنم کې وسوځئ، له هغوی سره د زړه مینه مه ساتئ، زړه مه وروړئ! هغوی خو دي جهنمیان، نو تاسې به هم له دې امله ورسره جهنمیان شئ چې له هغوی سره مو دزړه مینه وه. په قرآن کریم کې بار بار خدای پاک ﷻ وایي چې له نااهله خلکو سره دوستي مه کوئ! بلکې ښه خلک په دوستۍ ونیسئ! له مسلمانانوسره دوستي وکړئ! ځکه چې د مسلمان په دوستۍ کې فائده داده چې د آخرت ګټې پکې پیداکیږي اود نا اهله خلکو په ملګرتیا سره سړی آن د جهنم تر خولې پورې هم رسیدای شي، کله به داسې هم پېښه وي چې دجهنم مېلمه شي.

نو چې څومره مو وس وي باید له ښکانو سره مو علاقه وي، د ښه معنا دا چې هر عالم چې د شریعت په چوکاټ کې چلیږي، هر

مجاهد، هر حاجي، بلکې هر مسلمان چې د شریعت په چوکاټ کې دننه چلیږي هغه د الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ له دوستانو څخه دی، په مرتبو کې خو به یې خود فرق وي، د درجو تفاوت به وي، خو چې یو واری مسلمان و، نفس د اسلام له وجې نه د خدای پاک دوست دی، نو دمسلمان سره د اسلام په نظر چې سړی دوستي شروع کړي، د دنیا او قدرت له پاره نه وي، نویواځې په لیدنه کتنه، په سلام اچولو سره الله تعالی له انسان څخه خوشالیږي. بیاچې مسلمان یو قدم پورته کېږي، مثلاً طالب شو، مجاهد شو، عالم شو، نو دی د الله تعالی د اولیاوو له جملې څخه شو، چې څومره خدای پاک ته ورنژدې کېږي دغومره ددغه سړي محبت اونژدېوالی له خدای پاک سره راځي.

اکثره چې اوس مشران وي، ځوانان وي که کشران ورځ تر بلې ورځې بې لارې کېږي،وجه یې داده چې مجلسونه ورځ په ورځ خرابیږي، کمکی چې ووینې د کرکټ د کهلاړیانو ( لوبغاړو ) نومونه به یې زده وي او درته به وایي چې سبا په فلانکي ځای کې مقابله ده، د ټولې دنیا له مقابلې څخه به یې خبر وي، نو چې زمونږ د کمکیانو دغه حالت ده، چې غټ شي نو له ده څخه به څه جوړیږي؟

## صدقه باید د کمکیانو په لاس ورکړل شي

په یوه حدیث شریف کې حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي چې: تاسې چې کله صدقه ورکوئ، سائل مو دروازې ته ولاړ وي، نود کمکې په

لاس بې ور کړئ ځکه چې دی له وړوکتوبه په سخاوت باندې عادت
شي، هلک چې کله اووه (۷) کلن شو نو په لمانځه امر ورته کوئ،
سره له دې چې دی خو په پنځلس کلنۍ مکلف ګرځي، خو په اووه
کلنۍ ځکه دلمانځه کولو امر ورته کوئ ترڅو دی له دینداري سره
عادت شي، سره له دې چې ماشوم په شریعت کې مرفوع القلم ده
بیاهم حضرت نبي کریمﷺ وایي چې په کمکیني امر ورته کوئ
داچې لس کلنۍ ته ورسېږ غیر مکلف ده، بیایې په لمانځه باندې
وهي ترڅو چې هغه له وړوکتوبه په نیکي کولو عادت شي. شریعت
وایي چې خپله خور او ورور دې لس کلنۍ ته ورسېدل نو بسترې
یې سره بېلې کړه، یوځای یې سره مه پرېږدئ، ځکه شیطان دوی د
بدعملي لوري ته متوجه کوي، نوخپل خور او ورور سره بېل کړئ،
چې د ګمراهي طرف ته یې شوق پیدا نه شي. داچې شریعت کوم
قانون ږدي په هر یوه کې یې حکمت ده، داچې بار بار وایي چې
دنیکو کارونو طرف ته غټ هم امر کوئ او ماشوم هم امر کوئ، نر
او ښځې امر کوئ، له نیکو خلکو سره دوستي کوئ، له بدو خلکو
څخه ځان ساتئ، ملګرتیا یې مه کوئ، ځکه یې امر کوي چې په دې
کې د دین او دنیا فائدې دي.

قرآن کریم وایي چې: ﴿وَلَا تَرْكَنُوٓاْ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ﴾ له
مشرکې ښځې سره که هرڅومره ښائسته وي نکاح مه کوئ، که
هرڅومره شتمنه او مالداره وي، له هغې نه مینځه هم ښه ده خو چې
مسلمانه وي، اود مسلمانې ښځې په هکله بیا فرمایي چې
مسلمانه ښځه مشرک سړي ته په نکاح مه ورکوئ اګر که بادشاه

وي، ترهغه هغه مسلمان غلام ښه ده. څکه قرآن کريم په خپله وايي چې: مشرک سړی د جهنم په لوري کشکوي. د ښځې او مېړه په منځ کې خو ملګرتيا ده، صحبتونه او مجلسونه وي، د عمر ناسته ولاړه ده، خوچې له نااهله خلکو سره يې تعلق جوړ شو ګمراه کوي يې اودغه دينداره سړی بياد دين لوري ته سړی ورجلبوي.

نو غرض داده چې: تل به دا کوشش کوو او نور مسلمانان به هم دې لوري ته رادعوت کوو چې له نيکو خلکو سره يې تعلق جوړ شي، د نېکانو په مجلسونو کې شرکت وکړي، څکه چې همدغه د نېکو خلکو مجلسونه په مسلمانانو ښه اثر کوي، څکه الله تعالی فرمايي چې: ﴿وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ نصيحت کوه نصېحت مسلمانانو ته ګټه رسوي، خودا په هغه وخت کې چې ددوی له خوا الفت پيدا شي، که نه وي بعضې مسلمانان دي چې نصېحت بد پرې لګيږي، بياهم قرآن کريم وايي ﴿وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ﴾ نصېحت کوه خوهلته چې که فائده يې رسوله. که فائده يې نه رسوله بيا نصېحت ورته مه کوه، د دين بې عزتي مه کوه.

اوس نو فائده په دغو مجلسونو کې پيدا کېږي، دا دخلکو په تعلق کې پيدا کېږي، چې له نېکو خلکو سره د سړي مينه پيدا شوه، تعلق يې جوړ شو، بيا دقرآن خبره، احاديث اود مذهب خبره په سړي باندې ښه اثر کوي، بياد خدای پاک جل جلاله طرف ته په خپل رحمت سره سړی متوجه کوي.

﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ بیاد خدای پاک ﷻ وعده ده چې زما ددین اوزما د دوستي په طرف کې چې څوک کوشش وړي نو زه د دین او جنت لارې ورته خلاصوم. د نیکو لارو او نېکو اعمالو توفیق زه ورته ورکوم.

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله واصحابه اجمعین**





# (۱۱) مجلس

## آیا تکلیفونه او مصائب یوازې د ګناهونو له امله وي؟

دا قانون دی چې د ګناهونو او بدو اعمالو له امله انسان په دنیا او آخرت کې له مصیبتونو او مشکلاتو سره مخامخ کېږي. ددې خبرې یوازې دومره تشریح درته کوم چې ځینې ملګروته څه اشتباه پیدا کېږي.

دا که تکلیف دګناهونو له امله وي، نو انبیاء کرام علیهم السلام ته بیا ولې تکلیفونه رسیږي؟ مونږ وینو چې په دنیا کې چې څومره تکلیفونه اوزحمتونه انبیاء کرامو علیهم السلام او صحابهٔ کرامو ﷺ او اولیاء الله وو زغملي دهغوی په نسبت ډېره کمه حصه مصائب او تکالیف عوامو ته متوجه وي.

په هغو کې یوه بله خبره ده. د جهنم د اور په هکله راځي چې: کافر به هم په جهنم کې وي او ګناهګار مسلمان به هم وي، خود کافر له پاره جهنم د ذلت له پاره ده، او دمسلمان له پاره دغه اور د صفایې او پاکوالي له امله دی. کافر چې څومره وخت په اور کې تېر کړي له هغه کفر او تکالیفو څخه نه خلاصیږي اوهمداسې به جاري وي مګر مسلمان که چېرې یې په دنیا کې توبه نه وه ایستلې، په یوه طریقه خدای پاک ﷻ مغفرت ورته نه وو کړی، تکلیفونه پرې نه ود

ته شوي، ترديې پورې چې د جهنم مستحق شو، دوزخ ته ولاړ نو دده صفايي به د جهنم په اور سره کېږي. کله چې دی د ګناهونو له خيرو څخه پاک شو نو في الحال يې الله تعالی ﷻ له جهنم څخه راباسي اوجنت ته به يې داخلوي، نو حاصل د خبرې داده چې دغه يو اور ده د کافر له پاره د ذلت او اهانت سبب اود فاسق مسلمان له پاره د طهارت ذريعه ده، دهغه اور په ذريعه لکه اوسپنه چې له زنګ څخه پاکېږي دی له ګناهونو څخه پاکېږي.

په دنيا کې چې په نېکو انسانانو تکليفونه راځي او په بد عملو ته راځي ددې هم دغسې فرق لکه د بدعمله مسلمان او کافر دعذاب چې څنګه فرق ده، چې د کافر عذاب د اهانت له پاره اود فاسق مسلمان عذاب د پاکوالي له پاره ده. که مسلمان فاسق او بدعمله وي، عذاب ورباندې راته، نو اکثره يې خدای پاک ﷻ د صفايي له پاره ورباندې راولي چې دغه انسان د انساني خواهشاتو موافق د شيطان اود نفس دغوښتنې موافق په ژوند کې يې ګناوې کړې وي، چې دخدای پاک ﷻ ورته اراده ددې وي چې دمرګ نه بعد بيا په دغه انسان عذابونه رانه ولي نو په دنيا کې په دغه انسان باندې تکاليف راولي. ددغو تکاليفو په سبب خدای پاک ﷻ ګناهونه ورته معافوي.

په روايت کې راځي چې: د حضرت رسول اکرم ﷺ امت غالباً جهنم ته نه داخلېږي، يا په دنيا کې الله ﷻ په دوی داسې تکاليف او سختۍ راولي چې څه تقصيرات ورڅخه شوي وي، ددغو تقصيراتو په سبب چې کوم تکاليف پرې راشي په دنيا کې معافي

ورته کوي، یا توفیق د توبې ورکوي، که هغه نه وي نو د زنکدن په وخت کې یې چې څومره ګناوې پاتې وي په هغه یې خدای پاکﷻ له ګناوو څخه پاکوي، ځکه چې هم مسلمان وي او زنکدن یې سخت وي، که په هغه هم نه شو صفا بیایې د قبر په عذاب باندې هغه د ګناوو اثر ختموي، ډېر کم خلک دحضرت نبي کریمﷺ د اُمت به پاتې کیږي چې پـه دغـو ټولـو وختونـو کـې دده دومـره جرمونه اوګناوې وي چې د دنیا په تکالیفو ، دزنکدن اود قبر په تکالیفو دې معاف نه شي بیاچې د حشر په میدان دده په حق کې دجهنم فیصله وشي دابه د رسول اللهﷺ ډېر کم امتیان پاتې کېږي. اوکه نیک عمله مسلمان و ، هغوی ته په دنیا کې تکلیفونه ورسېدل نودهغو خو دلته د صفایي خبره نشته، دهغوی بیاد درجو د رفعت خبره ده، د آخرت ذخیره یې نوره هم زیاتیږي، څومره چې به دوی تکلیفونه راغي دغومره به یې اجرونه ډېر وي، خدای پاکﷻ چې له خپلو دوستانو څخه خوشاله وي، نو هغه خوشالي ابدي خوشالي برابروي، د جنت انعامات او ژوند نه ختمېدونکي دي، ددنیا چې هرڅومره راحت وي دابه خامخا یو ورځ ختمیږي. نو خدای پاکﷻ د خپلودوستانو له پاره هغه اُخروي ژوند انتخاب کړی دی، چې د جنت ژوند دی، نوبیاچې په دغه نېک عمله بنده څومره تکلیفونه راتلل صبر او استقامت یې پرې کاوه بیادده دآخرت درجې پرې لوړوي.

## د حضرت یوسف علیه السلام د عبرت نه ډکه قیصه

حضرت یعقوب علیه السلام پیغمبر دی، پلار یې حضرت اسحق علیه السلام پیغمبر دی نیکه یې حضرت ابراهیم علیه السلام پیغمبر دی، زوی یې حضرت یوسف علیه السلام هم پیغمبر دی، ټول خاندان د پیغمبرانو ده، نو په حضرت یعقوب علیه السلام باندې په دنیا کې څومره تکلیفونه راغلل ؟

دده دولس زامن وو، دوه زامن یې ( حضرت یوسف علیه السلام او بنیامین ) یې له یوې ښځې څخه وو. او لس زامن یې له بلې بي بي څخه وو.

خپل ورونه ورته پورته شول اود حضرت یوسف علیه السلام دوژلو اراده یې وکړه، بیایې په خپل منځ کې له مشورې وروسته د وژلو په ځای کوهي ته واچاوه، چې بیاد غلام په نامه خرڅ شو، بیا بندي خانه او نور تکالیف ورباندې تېر شول چې سړی د هغو برداشت نه شي کولای. خو حضرت یعقوب علیه السلام دخدای جل جلاله پیغمبر دی، واجب تعالی جل جلاله په دې هم علم ورکړ چې زوی دې ژوندی دی، له تاسره به یو رخت ووینې. خو حضرت یوسف علیه السلام ورک شو، د قافلې په خلکو یې خرڅ کړ، له کنعان څخه یې مصر ته یووړ، په مصر کې په هغه باندې کوم تکلیفونه بندي خانې تېرې شوې ؟ آخر الامر خدای پاک جل جلاله د دنیا دتکالیفو چې ده پرې صبر کړی و دهغو په عوض کې

یې په ده باندې په دنیاکې داسې راحت راوست چې دی د مصر حاکم وټاکل شو، د هر غت اعزاز خدای پاک ﷻ ورپه برخه کړ.

کله چې دده ورونه له کنعان څخه دخپلې خوراکې او غلې له پاره مصر ته ورغلل ځکه چې په نورو سیمو او علاقو کې وچکالي وه اود مصر خلکو خو خوراکي مواد ذخیره کړي وو( لکه چې واقعه یې تاسې ته معلومه ده ) نو کله چې یې ورونه ورغلل ده ﷺ په لومړي ځل وپېژندل چې دا خو زما ورونه دي، او دوی ونه پېژانده. بیایې امتحاناً له دوی څخه پوښتنه وکړه چې: تاسې دلته د څه له پاره راغلي یاست؟ دوی ورته وویل چې : د کور له پاره نفقه وړو. ده ﷺ ورته وویل چې: هسې نه چې د بل هیواد جاسوسان یاست؟ دوی وویل چې: نه جاسوسان نه یو. بیایې ترې پوښتنه وکړه چې: تاسې دکومې کورنۍ یاست ؟ دوی ورته وویل چې: دحضرت یعقوب ﷺ له کورنۍ څخه یو. بیایې ورڅخه پوښتنه وکړه چې نور ورونه مو شته ؟ دوی حالات ورته ټول بیان کړل چې مونږ دولس ورونه وو، یو راڅخه ورک شو، اوس یوولس پاتې یو، په هغه کشر ورور باندې مو پلار د خپل ورک زوی مینه ماتوي، ځان ته په هغه تسلي ورکوي.

دی ورته وایي چې: که بل وار راتلئ هغه کشر به هم درسره راولئ چې ستاسې صداقت معلوم شي اوکه مو رانه ووست بیاځه شی نه درکوم.

دوهم ځل ډېره موده وروسته بیایې ورونه راغلل، بیایې خپل ورور (بنیامین) ته ځان ورروښود، اوهغه یې د غلا په چل باندې له دوی ځخه راوګرځاوه، قصه یې ډېره اوږده ده، دریم وار یې هغه ورونه ډېره موده پس راغلل ده په دغه وار ورونو ته ځان ورو پېژاند.

مفسرین حضرات په دې ځای کې لیکي چې: په دې کې دخدای تعالیﷻ څه حکمت و؟ یوسفؑ پیغمبر ده، په لومړي ځل یې ځان ور ونه پېژانده، په دوهم ځل هم دغسې، په دریم وار چې بیا ورته راغلل اوخپل زحمتونه او تکالیف یې ورته بیان کړل، بیادده هم شفقت پرې راغی اوځان یې ورروښوده، خپل مبارک قمیص یې ورکړ ترڅو پرې دحضرت یعقوبؑ سترګې چې دحضرت یوسفؑ د جدایي له امله ړندې شوې وې دا کمیس دهغه په سترګو ووهي ترڅو جوړې شي، ځکه دا دجنت قمیص و، کله چې نمرودیانو حضرت ابراهیمؑ اور ته اچاوه نو جامې یې ورځخه راېستلې په دې وخت کې حضرت جبرئیلؑ ورته له جنت څخه قمیص راووړ، دغه کمیس بیا حضرت ابراهیمؑ خپل زوی حضرت اسحقؑ ته ورکړی و، هغه بیا حضرت یعقوبؑ ته اوهغه بیا حضرت یوسفؑ ته په غاړه کې اچولی و. کله چې دده ورونو دیؑ کوهي ته غورځاوه نو جامې یې ورځخه واېستلې، په کوهي کې دننه جبرئیلؑ ورته راغی، دده په غاړه کې د اوسپنې په تعویذ کې دغه کمیس بند و، هغه یې ورته راواېست، ده واغوست، بیا جبرئیلؑ دلته ورته وویل چې: دغه کمیس وروله‌یږه، په دې کې د جنت اثر ده، ړانده پرې بنا کېږي، اوس نو په

دغه خندولو کې حکمت څه و؟ په دې کې داحکمت و چې په دې کار سره دحضرت یعقوب علیه السلام درجې لوړې شي. دا د زندګي فراقت یې ور اوږد کړ. (۱۸) کاله یا (۴۰) یا (۸۰) کاله په منځ کې تېر شویدي، چې یوسف علیه السلام او یعقوب علیه السلام سره نه دي لیدلي. په دې به هم پوهېده چې ژوندی ده، راسره به ویني. خو ورښوده یې نه، صبر یې کاوه، نو حکمت دخدای پاک پکې څه و؟ د حضرت یعقوب علیه السلام ګناه نه وه، ځکه چې انبیاء کرام علیهم السلام معصوم دي، دده د درجو لوړوالی یې پکې مقصود و.

نوکله تکالیف په مسلمانانو راځي دا دوه حیثیته لري: که په مسلمانانو کې څه تقصیرات او ګناوې وي، نوکه دهغو تکالیفو له امله دی صبر وکړي خدای پاک جل جلاله ورته هغه ګناوې معاف کوي. اوکه نېک عمله مسلمان په څه تکلیفونو کې راایسار شي بیایې خدای پاک جل جلاله د جنت درجې پرې لوړوي.

## روغ خلک به په آخرت کې د مصیبت زده خلکو په حال غبطه کوي

په یوه حدیث شریف کې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم مبارک ارشاد ده چې: په قیامت کې کله چې الله تعالی جل جلاله مصائب ځپلو انسانانوته کوم انعامات ورکوي، نوکومو خلکو چې په دنیاکې یې مصائب او تکلیفونه لیدلي نه وي، نوهغوی به دا ارمان کوي چې کاشکې په دنیاکې زمونږ غوښې په بیاتي ګانو (قیچې) پرې شوی وای خو

چې نن مونږ هم ددغو انعاماتو مستحق ګرځیدلي وای. نو اصل خبره داده چې څومره سترې، مصیبتونه، مرضونه، غمونه چې په دنیاکې په یوه مسلمان باندې راځي هغه له الهي حکمت څخه خالي نه وي. الله تعالیٰ ﷻ قادر مطلق ده، بې بندوبسته اوبې ښه او بې بده روزي ورکولای شي، داسې مخلوق ته روزي ورکوي چې نه لاس اونه هم پښې لري، نه کاروبار کولای شي، لکه: دا حشراتو ته ناسې ګورئ چینجی ده په ښته روان وي، نه یې پښې اونه هم لاسونه شته، خو خدای پاک ﷻ څنګه روزي ورکوي؟ مګر یو ښه مسلمان، نېک عمله او ديندار، دخدای تعالیٰ ﷻ د دوستانو له جُملې څخه ده، تل په مسکنت او فقر کې ژوند تېروي، په وچه مړۍ خپل وخت تېروي، حالانکه د الله تعالیٰ ﷻ په خزانو کې څه کمی هم نشته، چې کافر ته یې ورکوي نودا خو یې دوست ده، ده ته یې ولې نه ورکوي؟ وجه او سبب او لامل یې دادی چې خدای تعالیٰ ﷻ یې برخه آخرت ته ساتلې ده.

په صحابهٔ کرامو ﷺ کې ډېر داسې کسان وو چې تر ډېره وخته ژوندي وو، نو کوم ملګري صحابهٔ کرام ﷺ چې له دوی څخه مخکې د فقر او مسکنت په حالت کې شهیدان او وفات شوي وو، نو دوی به دهغوی په حال ارمان کاوه.

حضرت حمزه ﷺ شهید شو، نو دومره جامه یې نه لرله چې ټول بدن یې پرې پټ شي، یوه شړی یې درلوده چې کله به یې سر ورته پټ کړ نو پښې به یې لوڅې شوې اوکه به یې پښې پرې ورته پټې کړې نو سر مبارک به یې لوڅ شو، آخر حضرت نبي کریم ﷺ امر

وکړ چې سر يې پټ کړئ او په پښو يې ورته واښه واچوئ! تاسې وګورئ چې د خدای دخوږ او درانه پيغمبرﷺ تره او رضاعي ورور ده، خوپه دومره مسکنت کې يې ژوند تېر کړ ، داسې صحابه کرامﷺ هم وو چې د ټول بدن د پټولو له پاره به يې جامه نه لرله.

حضرت ابوهريرهﷺ فرمايي چې: په اصحابِ صُفه کې اويا (۷۰) داسې کسان وو چې پوره جامې يې نه لرلې، تردې پورې چې يو له بل سره به نښتي ناست وو، خپل عورتونه به يې په هغو پورې پټول، خو وروسته چې کله په صحابهٔ کرامو ﷺ وسعت اوېراخي راغله ،غنيمتونه زيات شول، فتوحات به کېدل، بيادغو وروستنيو صحابهٔ کرامو ﷺ به د مخکنيو ملګرو په حالت دا ارمان کاوه چې دهغو انعامات الله تعالیﷻ دوی ته دآخرت له پاره جمعه کړل، په مونږ باندې خو په دنياکې وسعت راغئ، هسې نه چې د آخرت ثواب مو پرې کم شي.

لنډه داچې په دې بايد پوه شو چې تکاليف او مصيبتونه دا د آخرت د خير له پاره يوه ذريعه ده، کله داسې وي چې په مسکنت کې انسان د الله تعالیﷻ بندګي په ښه طريقه سره کوي، کله يې دمرض او مصائبو په حالاتو کې بندګي په صحيح طريقې سره کوي. الله تعالیﷻ چې له چاڅخه يوځل راضي شوی وي نوبياددهٔ د ايمان حفاظت کوي، داسې عمل ته يې نه پرېږدي چې اخرت يې پرې تباه شي، کله د چا دايمان او اعمالو حفاظت په مسکنت او غُربت کې وي، نو مسکين يې ساتي، کله دچا د ايمان او اعمالو حفاظت په مالداري کې وي، بيا يې مالداره ساتي. دوست يې وي

خو مو ړ وي، حضرت ابراهیم علیه السلام پیغمبر او حضرت نبي کریم ﷺ هم پیغمبر ده، دحضرت نبي کریم ﷺ په کور کې به ډېر ځله داسې پېښه ره چې یوه میاشت هم اور نه ده بل شوی، یواځې په کهجورو او اوبو باندې به یې وخت تېراوه. دحضرت ابراهیم علیه السلام د مېږو د رمو د سپیو په غاړه کې د سرو زرو امیلونه پراته وو. هغه هم پیغمبر ده، دغه هم پیغمبر ده.

همدارنګه صحابهٔ کرام رضی الله عنهم درواخله. دیوه صحابي رضی الله عنه دنیا او هستي نه ځاییږي. بل صحابي رضی الله عنه بیا دفقر په حالت کې داسې وي چې پوره لِباس نه لري، د لوږې نه بېهوشه وي. حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې ډېر ځله په ماباندې به بېهوښي د لوږې له امله راتله، زه به د لوږې له امله ولوېدم اوخلکو به لاس اوېښې رامښل چې ګواکې پېریانو نیولی او مېرګي یې دي.

همدارنګه اولیاء الله درواخله ؛ ځینو ته یې الله تعالیٰ جل جلاله بېنه پرېمانه هستي او جایداد ورکړی اوځینې یې په غُربت کې شپې ورځې تېروي. دا د الله تعالیٰ جل جلاله معامله ده د چا ایمان په غربت کې ساتي اوچاته هستي اوجایداد ورکوي اوهم په هغه حالت سره یې د ایمان حفاظت کوي.

نو غرض مې داده چې دا تکالیف خو د اعمالو سزا ده، نو نېک عمله انسانانو ته بیا ولې تکلیف ورکول کېږي نو په دغو تکلیفونو کې دا حکمت او ګټه ده چې یا ګناوې پرې ختمېږي اویایې درجې پرې پورته کېږي اودا کار بې عوضه نه ده.

نو مسلمان چې په هر عمل کې یوځه د آخرت په لوري هم متوجه
وي نوپه هر حال کې ده ته پکې فائده وي، خوپه دې شرط که دی د
الله تعالی ﷻ لوري ته متوجه وي، اوکه خدای مه کړه انسان غافله و
نوبیاهبځ شی ده ته کومه ګټه نه رسوي، نو بیايې که اولاد ډېرېږي
، دنيا يې ډيرېږي، قدرت يې ډيرېږي دا ټول دده له پاره عذاب او
تکليف ده. بياپه هرڅه کې دده له پاره استدراج ده، ورځ په ورځ به
په تکاليفو کې نور پسې غرقيږي، په ظاهره به ورته د دنيا ترقي
اوکاميابي ښکارېږي خوپه حقيقت کې به دا کار ده ته د آخرت په
لحاظ له تباهي پرته بل څه نه وي.

الله تعالی ﷻ دې مونږ اوتاسو ته ددې توفيق راکړي چې په هر آن
او حالت کې خپل لوی خالق او مالک ﷻ ته متوجه اوسو. که
تکليف راځي هم زمونږ بايد په دې يقين وي چې دا د الله تعالی ﷻ
له لوري ده اوهغه به يې راځخه بېرته اخلي. بې صبري او شکايت
بايد نه وي. که راحت وي هم بايد په دې مو يقين وي چې دا دالله
تعالی ﷻ له لوري نعمت او لورينه ده چې پر ما يې کړې او که چېرته
زه بغاوت او مخالفت وکړم بېرته يې هم راځخه اخيستی شي.

## په حضرت ابوبکر الصديق رضی الله عنه باندې دخدای پاک ﷻ سلام

يووخت سيدنا حضرت ابوبکر الصديق رضی الله عنه ته حضرت خاتم الانبياء
سيدالمرسلين حضرت نبي اکرم ﷺ وويل چې: الله تعالی ﷻ پر تا

سلام وايي او داهم وايي چې ته له ابوبکر نه پوښتنه وکړه چې مرض دي څنګه ده ؟

حضرت نبي اکرمﷺ چې د الله تعالیﷻ سلام حضرت ابوبکرصديقؓ ته ورساوه، بيايې پوښتنه ورڅخه وکړه چې ستا تکليف څه ده ؟ حضرت ابوبکر صديقؓ ورته وايي چې : غاښ مې خوږيږي. حضرت نبي کريمﷺ ورته وايي چې : څومره وخت پرې وتلی ؟ دیؓ ورته وايي چې: دوه کاله . نو په دوه کاله کې حضرت ابوبکرصديقؓ دخپل غاښ درد حضرت نبي کريمﷺ ته نه دی ښودلی ، دی په دې خبره پوهېده چې په دې صبر کې مې د آخرت ګټې دي. بيا الله تعالیﷻ ورڅخه خپل رضايت اعلان کړ، دده مقام او مرتبه يې خلکو ته وروبښندله، ملائکه يې راولېږله چې زما سلام ورته وايه اود مرض پوښتنه يې هم وکړه ، نو تاسې ګورئ چې څومره لوړ مقام يې دی؟

خودا چې سړی د آخرت طرف ته متوجه وي نو بياد مصيبت او راحت په دواړو حالاتو کې کار کيږي اوکه خدای مه کړه سړی غافله و، نوبياپه يوه حالت کې هم کاميابي او ترقي نشته او انسان به شپه ورځ له مصيبتونو او هغو پېښنو سره لاس اوګريوان وي چې دی يې نه غواړي خو هغه به ورپېښيږي.

**وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين**

**وصلی الله تعالی علی خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا و مولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين**

# ۱۲ مجلس

## له نیکو خلکو سره مشابهت

په حدیث مبارک کې راځي: حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: (من تشبه بقوم فهو منهم) څوک چې ځان مشابه کوي د کوم قوم سره په ورځ د قیامت به دهغه قوم په ډله کې راپورته کېږي.

ددغه حدیث شریف په تشریح کې محدثین کرام لیکي: هغه نر چې خپل ځان د ښځو په شکل باندې جوړوي نو دقیامت په ورځ به دی د هغوی په ډله کې وي. او هغه ښځه چې ځان د نارینه وو په شکل جوړوي نو دقیامت په ورځ به دا ښځه د نارینه وو په ډله کې وي. ددې معنا دا نه ده چې د هغو مقام ته یې خدای پاکﷻ رسوي، یعنې دغه سزا ورکوي، سړي ته چې کوم ښایست، حُلیه او د ترتوب خاصه چې خدای پاکﷻ ورکړې ده او دی هغه پرېږدي د ښځو لباس، دهغو خبرې او کردار ځان ته خوښوي نو واجب تعالیﷻ دا سزا ورکوي چې تا ولې خپل کوم زینت او کردار چې ماتاته درکړی دی تا هغه پرېښود، تغیر دې په خلق کې راوست او له بل چا سره دې ځان مشابه کړ. او کومې ښځې چې د نرانو سره ځان مشابه کوي، لوڅې ګرځي، د ستر لحاظ نه کوي، سر نه پټوي، د کور نه د باندې ګرځي، نو دا له نارینه وو سره مشابهت

دي. نو خدای پاکﷻ به دا سزا ورکوي چې تا هغه خلقت ولې بدل کړ؟نه ما په کوم کیفیت او هیئت باندې پیدا کړې یې ؟ تا په هغې کې ولې تغیر راوست؟ او ځان دې د نرانو په لباس کې خلکو ته معرفي کاوه،، خپل ځان دې په یوه بل عِنوان جوړ کړی و، نو دغه سزا درکوم. په هغه خلقت او جامه کې چې خدای پاکﷻ درته ښځه کړې وه تا ولې تغیر راوست؟ د هغه موافق دې ولې ژوند نه تېراوه ؟

حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: څوک چې متقي او پرهېزګاره نه ري، ښه سړی نه وي او ځان د ښو خلکو په جامه کې معرفي کوي، له نېکانو سره مشابهت کوي ترڅو خلکو ته دوکه ورکړي ، د عالم ، پیر په لباس کې خلکو ته ځان معرفي کوي نو دغه ته خدای پاکﷻ سزا ورکوي چې خلکو ته ځان ښه معرفي کوي او په تا کې هغه صفات نشته، نو دا کار داسې ده لکه د درواغو قمیص او پرتوګ یې چې اغوستی وي. خدای پاکﷻ په دې کار ورته سزا ورکوي. یو چې ولې دې ځان په ناحقه او چل ول له دوی سره مشابه کاوه ؟. یو خو په دې عنوان خبره وشوه . او بل ( مَنْ تشبهَه بِقومٍ فهُوَ مِنهُم ) معنا دا چې : یو څوک د نیکي طرف ته کوشش کوي ، خپله د نېکانو په ډله کې نه دی ، خو ځان دهغوی سره په خویونو او عادتونو کې برابروي ، هغه لمونځونه کوي، هغه ښه عادتونه چې د ښکو خلکو صفات دي ، په ده کې نه وي خو دی له هغوی سره کوشش کوي چې ځان کې یې دغه صفات راولي ، معنا دا چې دوی غونډې عبادت وکړم. ددوی په شان کالي واغوندم. ددوی

اخلاق په ځان کې پيدا کړم. نو د قيامت په ورځ به خدای پاکﷻ دغه انسان د هغو نېکو خلکو په ډله کې راپورته کړي. دا د حُب دليل دی. د چا چې له چا سره محبت وي ، هغه اخلاق او عادات په ځان کې پيدا کوي، هغه رفتار او ګُفتار په ځان کې راولي، نو چې څومره وس کوي ، که هغه په ده کې نه وي هم خو خدای پاکﷻ په ورځ د قيامت دی په هغه ډله کې راپورته کوي. له دې وجې وايي چې: د سهار له لمانځه نه مخکې چې د الله تعالیﷻ نېک بندګان راپورته کېږي او د تهجد لمونځونه او نفلونه کوي .په ذِکر او فکر او مراقبو لګيا وي ، نو بايد سړی په ځان کې تر ټولو مخکې دغه صفت پيدا کړي. د سهار له لمانځه نه وروسته تر لمر ختو پورې په ذکر او مراقبو مصروف وي . د حضرت رسول اللهﷺ دا مبارک عادت و چې : د سهار له لمانځه نه وروسته آن تر لمر ختو پورې به دی مبارک په ذکر لګيا و. بيا به يې د اِشراق لمونځ وکړ او خپل کور ته به ولاړ. نو يوڅوک د اولياوو الله وو له ډلې نه نه ده، خو له هغوی سره په نېکو اعمالو، اخلاقو ، کردار کې مشابهت کوي ، په دې معنا چې هماغسې ذکر ، فکر او عبادت کوي نو الله تعالیﷻ به دی هم د قيامت په ورځ ددغو نېکانو او صالحانو په ډله کې خامخا راپورته کوي.

او که يو څوک ډم ته کيني او ورته وايي چې: ماته انګريزي وېښتان راجوړ کړه. او خياط ته ورشي چې ماته انګريزي ډېزاين جامې تياري کړه ، نو په داسې کيفيت وېښتان جوړول او جامې جوړول چې هغه د بې دينه خلکو لباس او صورت وي او دی هم په

هغه باندې خوشاله وي او خوند ورکوي ، ځان له هغوی سره په
لباس او صورت کې مشابه کوي ، کافر نه دی ، خو ځان ورسره
مشابه کوي او خوند ورکوي نو دقیامت په ورځ به یې الله پاک ﷻ
هم دهغوی بدبختانو په ډله کې راپورته کړي.

که د دنیا په یوه سر کې نېک کار او عمل کېږي او د دنیا په بل
سر کې څوک ورباندې خبر شو او په زړه کې یې دا تمنا وکړه چې
کاشکې زه هلته وای اودغه نېک کار ما هم کړی وای نو الله
تعالیٰ ﷻ دغه انسان ته هم دغومره ثواب ورکوي څومره یې چې
هغه بل ته ورکړی دی.

## په نیت باندې دپوره عمل اجرورکوي

په یو وخت کې په بني اسرائیلو کې یو سړی په دښته کې روان و ،
په دې ځای کې غټې غټې غونډۍ وې. ددې سړي په زړه کې دا
خبره راوګرځېده چې کاشکې دا غونډۍ ټولې د غنمو وای او ما په
غریبو خلکو باندې ویشلي وای. الله تعالیٰ ﷻ د هغه وخت پیغمبر
ته وحیې وکړه چې دې سړي ته زېری ورکړه چې تاته یواځې په دې
نیت باندې ددغه عمل پوره اجر درکړل شو. نو که د زړه تمنا وي
خدای پاک ﷻ هغه مقام ورکوي.

او که د دنیا په هغه سر کې بد عمل کیږي اوڅوک ورسره مینه
لري چې: کاشکې زه هم هلته وای دغه بد کارونه ما هم کړي وای.
نو دی دلته ده او ګناه هلته کېږي نو د قیامت په ورځ به دی له هغو
خلکو سره یوځای کېږي.

ددغه حدیث شریف اصلي مطلب دادی چې: که څان مشابه کوي په روا عمل کې نو بیا په دې کې گټه ده، او په ناروا لباس کې د سړي له پاره مشابهت کول بیا تاوان دی. که په ناروا کې څوک له چاسره ځان مشابه کوي په هغه ناروا کې راځي. یعنې ښځه د نر لباس برابروي اویاهم نر د ښځې لباس برابروي دا دواړه د گناه کارونه دي. اخلاق او عادات د یو او بل په ځان کې پیدا کوي دا هم همدا حکم لري. له انگریزانو سره ځان برابروي دا هم ناروا ده. او که په روا کار کې له چاسره ځان مشابه کوي لکه: د علماوو لباس او عادات خوند ورکوي دغه دده له پاره گټه ده. چې په آخرت کې خدای پاک ﷻ ده ته غټ مقام ورکوي.

## د نیکانو سره پیژندگلوي په آخرت کې فائده لري

د مزاراتِ اولیاءِ هرات په نامه یو کتاب حدیث را نقل کوي: د حضرت نبي کریم ﷺ څخه روایت دی چې: د قیامت په ورځ باندې یو چا سره سوال او ځواب وشي بیا دده نیکي او بدي دواړه سره برابرې شي نو خدای پاک ﷻ ورته وایي چې: یوه نیکي راپیدا کړه نو زه به دې وبښم، دی چې هرڅومره سوچ او فکر وکړي نو نیکي نه شي پیدا کولای. بیا خدای پاک ﷻ ورته ووایي چې: تا زما فلانکی دوست پیژانده ؟ دی ورته وایي چې: هو ! خدای پاک ﷻ به ورته ووایي چې: ما یواځې په همدې پیژندگلوي وبښلې یې. اودا چې

بېرې د نېکو خلکو په لباس ځان برابروي اوده غوی عادات په ځان
کې راولي نو بیا به یې خدای پاک ﷻ ولې نه بښي؟

## د شجرې د لوستلو فائده

حضرت امام النووي ( رحمه الله ) چې د مسلم شریف شارح دی
دیو راوي په حالاتوکې لیکي چې د زنکدن په وخت کې دده
بچیانو ژړل ،دی تسلي ورته ورکوي چې ولې ژاړئ؟ زما امید ده
چې رب تعالی ﷻ به ماته عذاب نه راکوي . ځکه ددې کوټې په
کونجونوکې ما تقریبا (۱۲۰۰۰) دولس زره وارې قرانکریم ختم
کړی دی . اوپه یو روایت کې راځي چې (۲۴۰۰۰) څلورویشت
زره وارې مې قران کریم ختم کړی دی . نو زه رب تعالی ﷻ ته امید
لرم چې هغه به ماته عذاب نه را کوي ؛نو زما مرګ دژړا اوخفګان
نه دی تاسو مه ژاړئ .

دلته امام النووي ( رحمه الله ) لیکي چې څوک دې دافکر نه
کوي چې دراویانو دومره احوالوته څه ضرورت دی چې ددوی
تولې قصې ذکر کېږي ،چې ده دومره لمونځونه کول داسې
تلاوتونه یې کول ، ختمونه یې کول ،ځکه چې دداسې خلکو په
نومونو یادولو سره خدای پاک ﷻ په هغه ځای رحمتونه اوروي؛نو
داولیاء اونیکوخلکو په واقعاتو سره داحادیثو دکتابونو څخه
معلومېږي چې په هغه ځای دخدای پاک ﷻ رحمتونه نازلېږي .

په بخاري شريف کې دبدرينو صحابه کرامو ﷺ نومونه ذکرکېږي اوبيا شيخ عبدالحق دهلوي (رحمه الله) ور سره ليکي چې دبدرينو نومونه چې ذکرشي اوبيا دعا وکړي خدای پاک ﷻ هغه دعا قبلوي . صحابه کرام دي يواځې چې ددوی نومونه واخيستل شي اوبيا رب تعالی ﷻ ته سوال وشي نو خدای پاک ﷻ ددغه انسان دعا قبلوي ځکه چې بدرين دخدای پاک ﷻ دوستان دي ،رب تعالی ﷻ له دوی نه دخپلې رضا اظهار کړی ،چې زه له دوی نه راضي يم .

په حديث شريف کې راځي چې يوصحابي ته چاځه وويل ، حضرت نبي کريم ﷺ ورته وايې چې ولې څه ورته وايې ؟ ته نه يې خبر چې دابدري دی .اورب تعالی ﷻ دوی ته مخکېني اووروستنی ټولې ګناهونه معاف اوبخښلې دي .

داکوم خلک چې خدای پاک ﷻ ته نږدې وي ،يواځې په نومونويادولوپه برکت سره خدای پاک ددوی دعا قبلوي .

له دېنه دشجرې دلوستلو ښه ثبوت کېږي .

دا زمونږ د طريقت شجرې چې يوڅوک يې هره ورځ وايي په دې سره هم ددې طريقې له بزرګانو سره شناخت پيدا کېږي، يواځې په ويلو سره . ځکه ته په دې پوه شوې چې په دې سلسه کې له ما څخه نيولې آن تر حضرت نبي کريم ﷺ پورې چې څومره نومونه دي دا ټول بزرګان دي او ستا هم ورته عقيده پيدا شوه. مينه دې ورسره پيدا شوه. لکه: خليفه صاحب دې ليدلی نه دی خو چې په سلسله کې دې نوم وليده نو مېنه دې ورسره پيداشوه. حضرت صاحب دې ليدلی

نه دی خو په سلسله کې دې نوم ولیده نو مینه دې ورسره پیدا شوه چې دا خو زمونږ دسلسلې یو لوی شخصیت دی، آن تر حضرت ابوبکر صدیقؓ او حضرت نبي کریمﷺ پورې دا سلسله ده. نو چې شناخت او پیژند ګلوي پیدا کېږي نو له دې سره مینه او محبت پیدا کېږي.

څوک چې څوک نه پیژني نو محبت به له کومه پیدا شي؟ دا چې د چا له بل چا څخه کرکه پیدا کېږي او یایې هم ورسره مینه پیدا کېږي نودا یواځې په شناخت سره پیدا کېږي. یوڅوک ده ستا ورسره هېڅ بد نشته خو داسې دې وپېژانده چې دا یو بدعمله دی نو ستا له هغه سره په زړه کې کرکه پیدا کېږي. یو سړی له تاسره هېڅ تعلق نه لري، خو که څوک یې درته صفت او بیان وکړي او ردې پېژانده چې دا ښه سړی دی نو په زړه کې دې له هغه سره مینه او محبت پیدا کېږي.

له چا سره چې دې مینه او محبت پیدا شو نو دهغه هم درسره پیدا کېږي. بیا سړی کوشش کوي چې هغه عادات او اخلاق په ځان کې راولي، بیا نو ددغه حدیث شریف مصداق ګرځي: (اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ) د چا چې له چاسره په دنیا کې محبت وي نو په آخرت کې به هم له هغه سره یوځای کېږي.

نول تاریخ چې وکتل شي نو دهر خلک داسې پیدا کېږي چې له ښو ښو خلکو سره یې مینه او محبت وي، سره له دې چې لیدلي

يي هم نه وي او بيا په همدې مينه او محبت باندې يې الله تعالىﷻ
ټول د دنيا او آخرت کارونه جوړ کړي دي.

## د يو نيک شخص په واسطه شيدې او شهد حاصلول

يو بزرګ په خپل کور کې له خپلې بي بي څخه د څه بي ادبي په سبب خفه شو، چې هغې ورته احترام نه درلود. دی ناراضه شو او له کور نه روان شو ، نو په دښته کې يې يو ملنګ وليده چې په عبادت مصروف ده، دی ورغی ، له سلام څخه وروسته يې ورسره څه مجلس وکړ ، وروسته دا ملنګ پورته شو او په يو طرف يې او وه قدمونه واخيستل ، هلته يوه تيږه وه، هغې ته يې جام ونيوه ، له هغې څخه شيدې او شات ورته پيدا شول، دی حيران شو چې دا څومره د لوی کرامت ښبتن دی ، چې له تيږې نه شات او شيدې ورته راووتي . ده ورته وويل چې: تعجب مکوه. حضرت موسی‎ﷺ ته خدای پاک دا معجزه نه وه ورکړې ؟ چې هغه به تيږه په امسا ووهله او اوبه به ورڅخه روانې وې . دا خو په قرآن کريم کې ثابته ده. دغه بزرګ ورته وويل چې: هو ! بيا ملنګ ورته وويل چې: آيا حضرت محمدرسول اللهﷺ له حضرت موسیﷺ څخه لوړ مقام لري او که نه ؟ ده ورته وويل : هو ! هغه بيا ورته وويل چې: حضرت موسیﷺ ته خدای پاکﷻ له کمر څخه اوبه ورکولې نو حضرت نبي کريمﷺ ته که شات او شيدې وبهيږي نودا کومه د حيرانتيا ده

څېره ده ؟ اولیاء الله وو ته چې کوم کرامت پیدا کېږي، هغه د نبي معجزه ده دده خپل کمال نه ده، نو دهغه په متابعت ورته پیدا کېږي. وروسته بیا دغه بزرګ ورڅخه پوښتنه وکړه چې: تا په دغه لوري قدمونه واخیستل او په دغو قدمونو درته دا خوراک پیدا شو نو ملنګ ورته وویل چې: په فلانکي ځای کې یو ولي ده چې هغه په خدای پاک ﷻ ډېر ګران دی. ماته یې خلکو ډېر صفتونه کړي دي، زه په دې ځای کې ډېر وخت کېږي چې اوسېږم نو ماته چې کله کوم مشکل پیدا کېږي نو ددغه ولي په طرف چې اووه قدمونه واخلم او دی خدای پاک ﷻ ته وسیله کړم نو هر کار مې پوره کېږي. نو اوس سره له دې چې دغه ولي دغه بل بزرګ لیدلی هم نه ده خو چا یې ورته صفت کړی نو دی یې خدای پاک ﷻ ته وسیله کوي او ټول کارونه یې وربانديې روان دي.

نودغه ملنګ دغه بزرګ ته وایي چې: هغه بزرګ چې زه یې خدای پاک ﷻ ته وسیله کوم نن هغه له خپل کور څخه مرور شوی او په سفر روان ده، نو که بېرته خپل کور ته ونه ګرځي نو دغه مقام چې الله پاک ﷻ ده ته ورکړی چې دده په وسیله ماته هرڅه راکوي نو له ده څخه به دا مقام الله پاک ﷻ بېرته واخلي.نو دی هم له همدې ځای څخه بېرته کور ته وګرځېده

اوس یواځې شناخت پیدا شوی او عقیده دې برابره ده نو خدای پاک ﷻ دې کار هم درجوړوي. کتاب لیکي چې: څوک کوم ولي ته په خومره اخلاص او محبت سره ورځي نو په هغومره اندازه ورته فیض حاصلیږي. کوم زیارت ته چې څوک په څومره اخلاص سره

ورځي نو هغومره فیض او برکت پکې پیدا کېږي ، نو په شناخت
کې چې څومره د هغه سړي شخصیت غټ ورته ښکارېږي دغومره
محبت زیاتیږي نو چې څومره محبت زیاتیږي نو دغومره فیض او
برکت زیاتیږي.

## داخلاص په وجه یوشخص ته د داتا صاحب له قبرلاس را ایستل۔

یو خلیفه صاحب قصه کوله چې: زه یو وخت مرحوم
انوارالمشائخ فضل الدین خلیفه صاحب مبارک له میرانشاه نه
لاهور ته د داتا صاحب زیارت ته ولېږلم ، سره له دې چې هغه ځای
ما په ټول عمر کې نه و لیدلی ، بې له شناخت څخه مازدیگر سپور
شوم او سهار لاهور ته ورسیدم، هلته چې په زیارت کې کېناستم
نود ستړیا له وجې په وظیفه کې ویده شوم، له دې سره سم په خوب
کې داتا صاحب مبارک له قبر څخه لاس راویوست او ستړي مشي
یې راسره وکړه اوراته یې وویل چې: راورسېدې ؟ ما ورته وویل چې
: هو ! صاحب !

نو اوس چې دی په کوم اخلاص له مېرانشاه نه روان شوی او په
کوم اخلاص ورغلی هغه ته خدای پاکﷻ دغه علم ورکړ.

نو غرض داچې مونږ باید له ښکو خلکو، علماوو، طالبانو،
مجاهدینو بلکې له عامو مسلمانانو سره د اسلام له وجې د زړه له
تله مینه او محبت ولرو، دغه مینه په دنیا او آخرت کې گټه رسوي

او له چاسره که دښمني او کرکه کوو نو هلته به مو هم همدا نیت وي چې الله پاک ﷻ رضا شي. چې هغه سړی به د الله پاک ﷻ له دین سره بې پروا وي، که کافر وي، فاسق وي ، که خپل وي که پردی وي خو چې له دین سره بې پروایي کوي نو باید له هغه سره اړیکې ختمې کړو، که په لاس باندې یې نه شو منع کولای نو تعلقات خو باید ورسره ختم کړو، ځکه چې په دې سره خدای پاک ﷻ خفه کېږي او بیا انسان ماخوذه کېږي. ځکه الله تعالی ﷻ فرمایي: ( وَلَا تَرْكَنُوٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ ) د ظالمانو کافرانو طرف ته د زړه میلان هم مه کوئ او کنه بیا به تاسې په هغه اور باندې وسوځل شئ په کوم اور چې دغه کافران سوځل کېږي.

خدای پاک ﷻ فرمایي: ( وَكُوْنُوْا مَعَ الصَّادِقِيْنَ ) هلته وایي چې: له ظالمانو سره مینه مه کوئ ! او هلته وایي چې له صادقینو سره اوسېږئ! هلته وایي چې له یهودو او نصاراوو سره محبت مه کوئ! هلته وایي چې : تاسې مسلمان له مسلمان سره محبت کوئ ! د مسلمان له مسلمان سره په محبت کې ګټه ده، د کافر او فاسق او ظالم په محبت کې له مسلمان سره تاوان ده.

فائده:

د طریقې ټول مطلب داده چې: سړی به په سره معامله کې د الله تعالی ﷻ سره هم مخلص وي او له بندګانو سره به هم د اخلاص معامله کوي. لکه په حدیث شریف کې راغلي چې: حضرت جبرائیل علیه السلام له حضرت نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه کوي چې: (

مَاالاحسانُ ) احسان څه شي ده ؟ حضرت نبي کریمﷺ ورته په ځواب کې وایي چې: اَنْ تَعبُدَالله کَاَنَّکَ تَراهُ ) چې د خدای پاکﷻ عبادت به په داسې اخلاص کوې لکه ته چې الله تعالیﷻ په خپلو سترګو وینې. او بیا وریسې وایي چې: (فَاِنْ لَمْ تَکُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهُ یَرَاکَ ) که ته الله پاک ﷻ نه وینې نو دی خو دې وینې.

د الله پاکﷻ له بندګانو سره به هم داسې اخلاص کوې، څکه هغه په تا باندې حق لري او په حق به یې وفا کوې، که ظلم یې درسره وکړ نو ته به ورته عفوه کوې. که هغه درسره صلهٔ رحمي نه کوله ته به یې خامخا ورسره کوې. محسن اوسه او خامخا احسان کوه. نو بیا به تاته په دواړو دارینو کې کامیابي په برخه وي.

نو د طریقت مطلب داده چې هغه خپلو ټولو اعمالو کې اخلاص پیدا کړې، هر کار چې کوې د الله پاکﷻ د رضا له پاره به یې کوې، که له چاسره دوستي او دښمني کوې نو معیار به یې د الله پاکﷻ په رضا سره وي. په حدیث شریف کې دي چې: ( اِنَّ احبَ الاعْمالِ اِلَی اللهِ الحُبُ فِی اللهِ وَالْبُغْضُ فِی اللهِ ) په ټولو اعمالو کې

بهترین عمل هغه ده چې که له یو چاسره مینه کوې هم د خدای له پاره او که بُغض ورسره کوې هم د خدای له پاره. یعنې خاص په دې خاطر یې کوې چې دا د خدای پاکﷻ دوست دی. او که له یو چا سره دښمني او عداوت کوې هم یواځې په دې اساس یې کوې چې دا دخدای پاکﷻ دښمن دی.

هر کار چې د خدای پاک ﷻ د رضا له پاره وشو نو د دنیا او آخرت ګټه یې ده، اوپه دې سره کامیابي هم ترلاسه کېږي. او کوم کار چې په نورو اغراضو بنا وي او د الله تعالی ﷻ رضا مطرح نه وي ، مثلاً لمونځ کوي، روژه نیسي، صدقه ورکوي چې د خدای پاک ﷻ د رضا له پاره نه وي نو دا کار ریا ده، قرآن کریم وایي چې: په ریا کاري سره خپل اعمال مه باطلوئ ! منْ او اذی په چا باندې مه باروئ ! لکه هغه سړی چې ریا کوي او خپل عمل باطل کړي چې اخلاص نه وي نو ریا ده، ، صدقه کوه په کروړونو روپۍ ورکړه خو چې نیت دې خراب وي او خلکو ته ځان ورباندې ښیي نو دیوې وریشې په اندازه هم ثواب نه لري.

یمه خُرما صدقه کړه او نیت پکې روغ ساته نو خدای پاک ﷻ به یې درته د اُحُد د غره په اندازه اجر درکوي. ، مطلب دا چې مخلص شوې نو فائده به وي او که اخلاص نه وي بیا هسې بې فائدې ځان ستړی کوي.

نو د ټول طریقت مطلب اخلاص ده، چې مخکې د احسان په حدیث کې ورته اشاره وشوه. دا د طریقت مقام ده، ددې مطلب داده چې اخلاص پیدا شي.

نو لنډه داچې له خپل مور او پلار ، خپل اهل او اولاد، خپلو وطنوالو بلکې له ټولو مسلمانانو سره به اخلاص ساتې. له هر چا سره چې دې کوم قسم تعلق وي چې په هغه تعلق کې مخلص شي نو

بیا اصلِ معنا د تصوف په ده کې موجودیږي. بیا دغه انسان کامیابه کېږي.

**وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی آله واصحابه اجمعین**







# (۱۳) مجلس

## دباطني مرضونو دعلاج لاره

امام غزالي رحمه الله په مکاشفة القلوب نومې کتاب کې ذکرکوي چې چاته خداوندمتعال ﷻ دنیکې خاتمې اراده وکړي نو خدای پاک ﷻ یې خپل عیبونوته متوجې کړي ،دخپلو عیبونو داصلاح کوشش شروع کړي.

اوچا ته چې خداوندمتعال ﷻ دسوء (خرابې) خاتمې اراده کړې وي هغه دخپلو عیبونو څخه ړوند شي، خپل عیب نهویني ، اوچې دعیب نه ړوند شي نودعیب داصلاح کولو کوشش هم نه کوي ،لکه په آیت کریمه کې خدای پاک ﷻ فرمایي : ﴿ وَمَن كَانَ فِي هَٰذِهِ أَعْمَىٰ فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ أَعْمَىٰ ﴾ چې څوک په دنیاکې ړوند وي ،خپل عیبونه ،نه ویني ،هغه په اخرت کې هم ړوند وي ،خپل عیبونه به نه ویني.

خوددغو عیبونو داصلاح له پاره حضرت امام غزالي ( قدس الله سره ) څلور لارې ذکر کړې دي.

## دامام غزالي ( قدس الله سره ) لنډه پيژندنه

حضرت امام غزالي (قدس الله سره) په سنه (۴۵۵) هجري کې پيدا شوی اوپه سنه (۵۰۵) هجري کې وفات شوی، ده په خپل عمر کې دومره تصنيفات کړي چې دده په عمر يې وويشو نوهرې شپې ته به يې يوځانته تصنيف ورسيږي.

دې په مکاشفة القلوب کې ليکي چې دعيبونو داصلاح له پاره، چې داخرت له عذاب نه پرې خلاص شي، څلور لارې دي:

**اوله لار: کامل شيخ ته ځان سپارل**

اول داچې سړی دشيخ کامل نه، دپيرکامل نه، چې په شريعت برابر وي، له هغه نه بيعت وکړي اوخپل ځان خپل پيرته وسپاري، هغه قاضي اوحاکم مخکې کړي چې ده ته دځه شي حکم کوي، دی يې تابعداري کوي، بيا هغه شيخ کامل دده عيبونه چې ويني دعيب داصلاح کوشش کوي. نودی به بيا په مقابل کې دلائل نه وايې، لکه طبيب اوډاکټر ته چې څوک ورشي، هغه دده دمرض تشخيص وکړي، دمرض سره موافق چې کومه نسخه ورته ليکي نومريض په ډاکټر باندې اعتراض نشي کولای چې ماته دارنګه نسخه مه ليکه.

## دوهمه لار: د نیکو او مخلصو خلکو ملګرتیا ده

دهلاکت څخه دبچ کیدلو دوهمه لار دصادقو ،نیکو ،ناصحو اومخلصوخلکو سره ملګرتیا ده چې هغوی له ده سره له دوستي اوملګرتیا کې رښتوني اوخیرخواه وي ، چې دچا عیب ویني دهغه داصلاح کوشش کوي ،وربښيې یې چې وروره په تاکې دغه عیب ده ، مسلمان یې ددغې ګناه په وجه تباکېږي نوهغه یې داصلاح کوشش وکړي . ځکه مسلمان دبل مسلمان له پاره آینه ده ،لکه چې په آینه کې یوڅوک په خپل مخ کې کوم تور داغ ویني نوهغه سمدستې دلرې کولو کوشش کوي اولرې کوې یې؛ نونیک ،صادق اوخیرخوا ملګری دبل له پاره دآینې مثال لري . مسلمان ته خپل عیب نه معلومېږي خودانیک ملګری یې ور وښيې چې په تاکې دغه عیب موجود ده ددغه ازاله وکړه ،په دنیاکې هم پرې بدرنګه کېږي اوپه اخرت کې هم پرې بدرنګه کېږي.

خومره چې لوی لوی مشائخ اوغټ خلک تیرشوي هغو تولودخپلو عیبونو اصلاح په همدې طریقه کړې دی.

حضرت عمر فاروق ﷛ به ویل چې خدای پاک ﷻ دې په هغه کس رحم وکړي چې ماته زما عیبونه را .

یوځل یې حضرت سلمان فارسي ﷛ ته ویل چې ته زما په رعیت کې ډېر ګرځي ،خلکو زما کوم عیبونه درته بیان کړي دي ؟ حضرت سلمان فارسي ﷛ دحیا اوشرم له وجې څه نه ورته وویل

؛خوحضرت عمرفاروق ﷺ يې ډېر تينګار پرې وکړ ،له تينګار نه وروسته يې ورته وويل چې ځومره زه ګرځيدلی يم ؛نوخلکو ماته د تا په هکله دوه عيبونه بيان کړي دي :

اول داچې دتا په دستارخوان باندې دوه رنګه خواړه موجود وي.

دوهم داچې ته دوه جوړه جامې اغوندې.

اودا کارونه ځکه دوی عيبونه بلل چې حضرت عمرفاروق ﷺخودمسلمانانو امير اومشر و دده نفقه له بيت المال څخه ورکول کيدله ،نودخلکو په ګمان ،دوه رنګه خواړه زيادت اواسراف دی. دارنګه دوه جوړه جامې هم ددوی په نزد اسراف ښکاره کيده.

حضرت عمرفاروق ﷺ ورته وويل چې نورعيبونه نوي ددغو دو له پاره زه کافي يم.

ددو قسمونو خوراکوڅخه داجواب دی چې يوقسم خوراک دتيري شپې پاتې وي اوبل قسم خوراک نوی پوخ شوی وي نوخلکو ته په يو وخت کې دوه قسمه خوراک معلوميږي.

ددو جوړو جامو اغوستلو څخه داجواب دی چې يو جوړ دشپې له پاره اغندم اوبل جوړ دورځې اغوندم. نودشپې جامې بدلول يومستحسن امر دی ځکه چې دشپې سرې ته ضرورت وي احتلام اوجنابت انسان ته پيښيږي ؛نوپه شريعت کې ناروا اوممنوع نه دی.

بورخت يې حضرت ابوحذيفه بن يمان ﷺ (چې دحضرت رسول الله ﷺ دسراوراز ملګری و) ته به يې ويل چې تاته خو حضرت رسول الله ﷺ دمنافقو علامې ښودلې دي ،په ماکې خوبه له دغومنافقو کومه علامه نه وي موجود ؟ ددومره غټې شخصيت سره سره بياهم له حضرت حذيفه ﷺ نه پوښتنه کوي چې که خامخا وي چې اصلاح يې وکړم.

څومره چې لوی اوغټ خلک تيرشوې دي ؛نودنيکو خلکو سره په ملګرتياکې دې مرتبې ته رسيدلې دي ، نويوبل ته به يې داصلاح له پاره دده عيبونه بيانول او هغه به يې داصلاح کوشش کاوه.

## حضرت داود طائي د عيبونو د نه په ګوته کولو له وجې کلی پرېښود

حضرت داود طائي خپل کلی پريښوده اوپه يوګوښه ځای کې بې ګوډخه جوړه اوعبادت يې کاوه ، چا ورته وويل چې ولې دي مسلمانان پريښودل اوله مسلمانانو څخه ګوښه شوی ؟ ده ورته وربل چې زه هغه خلک څه کوم چې زما له عيبونوڅخه سترګې پټې وي ،دداسې خلکو ملګرتيا څه فائده ؟

بيا يې دمثال په توګه وويل چې که موږ اوتاسې ددغې دنيا په ژندګۍ کې يوڅوک داووايې چې دتاپه جامو يالستونې کې مار اوربا لړم دی نوموږ له هرڅه نه مخکې دهغه دلرې کولو کوشش کوو چې هغه مار اولړم لرې کړواوپه دوهمه مرتبه کې دهغه سړي

نه زيات خوشحاله يو چې له ماسره دي ډېره ښېګڼه وکړه چې زه دي دلړم له ضرر نه خلاص کړم.

اوس يې نودغه دلړم اومار ضرر په ظاهر بدن کې وي ،ځکه چې ظاهري بدن وچيچي نودرد يې ترنيمې ورځې ياپوره ورځې پورې وي ؛خوافسوس ! چې ځينې مسلمانان چې يو څوک داصلاح په خاطر ،ده ته نصيحت کوي اوهغه امراض چې دهغو ضرر اوتکليف څوچنده له مار اولړم نه زيات دی ،ځکه چې دهغو اثر په زړه باندې کېږي اوضرر يې دائمې وي تردې پورې چې ترقبره اوجهنم پورې رسيږي ؛اودی يې په غرض اوحسد باندې حمل کوي ، بالمقابل داځواب وايې چې ته ماته وايې پخپله څه شی کوې؟ خوپه تاکې هم داعيب موجود دی ؟ په فلانکي کې هم داعيب موجود ده؟ داځکه وايې چې نن سبا خلک داصلاح سره مينه اوعلاقه نه لري، مخکينيوخلکو به دعيبونو پوښتنه کوله ،که به ده پوښتنه ونکړه هغوی به دخيرخواهي په غرض عيب ورته وښود ،اوده به دهغه عيب داصلاح کوشش کاوه؛نن سبا چې چاته نصيحت کېږي هغه يې په حسدباندې حمل کوي ،ياخو وايې چې ملګرې داسې ملګری دی چې مداهنت کوي ،عيب اوګناه په تاکې وينې خوچا پړوسي کوي تاته يې نه وايې . اوکه يې بيان کړي په هغه بل ښه نه لګيږي چې زما سره يې عداوت ده ،په مايې ښه نه لوريږي ،ځکه ماته داخبره کوي.

نودوهمه داصلاح لاره داده چې دنیکواومخلصوخلکو سره ملګرتیا غوره کړي . اودهغه په لاربښوونو باندې عمل وکړي اوددوی ښودنه ذریعه دنجات وبولي.

## دریمه لار: ددښمنا نو خبروته غوږ نیول دي.

په دنیاکې عادت داده چې دیوچا په مابین کې دښمني وي نودهغه په عیبونوپسې متوجې وي ،عیبونه یې بیانوي، نوکله کله ،هغه مداهن چاپړوس ملګري نه دښمن سرې ته ګټه رسوي.

نوچې څوک دتا عیب په هرځای کې بیانوي چې فلانکې په فلانکي مجلس کې دتا عیب بیانولو نوخپل ځان ته به سوچ وکړي چې که رښتیا دغه عیب په تاکې وي نواصلاح به یې کړي، نوکله دښمن په ذریعه سره دسړي اصلاح راځي.

## داصلاح څلورمه لار: دمسلما نوسره ګډ ژوندون کول دي

څلورمه طریقه دعیبونو داصلاح داده چې سړی دمسلمانانو سره یوځای ژوند کوي اودمسلمانانو اعمالو ته ګوري ،چې یوکس ګورې غلا کوي اوعام خلک له هغه نه کرکه کوي نودی به له غلاڅخه ځان ساتي. اویا یې یوڅوک ولیدل چې شراب خور دی اوعام مسلمانان په هغه لعنت وایي؛نودی به له شرابوڅخه کرکه اونفرت کوي یعنې هربدعمل اوعیب چې په خلکو کې ګورې

نودی به له هغه عیب نه دځان ساتلو کوشش کوي، ځکه دی ګوري چې که زه هم داسې وکړم نوله مانه هم خلک نفرت اوکرکه کوي.

## حضرت عیسی علیه السلام ادب له چا زده کړ؟

دحضرت عیسی علیه السلام نه چاپوښتنه وکړه چې تاته په څه شي آدب درکړ شوی ؟ دا اخلاق دې دچا نه زده کړي دي؟ دی مبارک په ځواب کې ورته وایې چې دغه آدب ما له جاهلانوڅخه زده کړی، هغه داسې چې ما جاهل سړی ولید چې هغه به نا لایقه کار کاوه نوما داکوشش کاوه چې زه داسې کار ونه کړم.

زیاتره عیبونه چې انسان ته رسیږي هغه باطني عیبونه وي لکه په قراکریم کې راځي: ﴿ وَإِن تُبْدُواْ مَا فِيٓ أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ ٱللَّهُ ﴾ ددې آیت مبارکه په تشریح کې مفسرین کرام لیکي چې خدای پاک ﷻ دحساب تعلق داعتقاداتو باطني امورو سره وکړ ،هغه شیان چې دتاسې په سینوکې دي که ښکاره یې کوئ اوکه پټ یې کوئ خدای پاک ﷻ به ددغو حساب درسره کوي.

نولکه مخکې موچې وویل چې یوقسم داسې عمل اوګناه ده چې ظاهره بدن ته یې ضرر رسیږي اوبل داسې قسم ده چې زړه ته داغ ورکوي ،زړه ته یې اثر رسیږي ؛خودانسان له پاره په دې کې هغه زیات ضرر اومهلک دی چې زړه ته داغ اوضرر ورسوي.

تکبر اوغرور انساني صفت دی ؛خو دا دومره مهلک مرض دی چې شیطان دخدای پاک ﷻ له دربار څخه دهمدې په سبب ورټل شو ،اولنۍ ګناه دده کبر ظاهرشو، کله چې ملائکو ته وویل شول حکم وشو چې آدم علیه السلام ته سجده وکړئ نوټولو ملائکو په یوار سره حضرت آدم علی نبینا وعلیه وسلم ته سرپه سجده شولې او دتکبر له وجې نه شیطان انکار وکړ اودلیل یې دا وویلې چې دی دې له خټې نه پیدا دی اوزه دې له اور نه پیدایم ،اور بهتر دی له خټې څخه ؛نوعجب اوتکبر یې وکړ،نوددغه تکبر اوغرور له وجې نه دی ملعون شو اوتر ابد پورې دخدای پاک ﷻ له رحمته ورټل شواودقیامت په ورځ به د اور په ممبر ناست اوده ته به سزا ورکول کېږي ؛نوپه انسان کې تکبر باطني مرض ده ،دانسان په ظاهرکې نه معلومېږي.

عجب اوبد بیني هم باطني مرضونه دي ،سړي ته خپل ځان لوی معلومېږي ،خپل عمل مقبول ورته معلومېږي ، خپل ځان ښایسته ورته معلومېږي ،لکه زه طالب یم . زه مجاهدیم . زه صوفي یم .زه تبلیغي یم اوزه فلانکی یم نوخپل ځان غټ ورته ښکاره شي کله چې په انسان کې عجب راغی نودغه انسان ابدي تباکوي.

حضرت عمرفاروق ﷺ ته حضرت نبي کریم ﷺ دجنت زیری هم ورکړی و، اوزیری هم درسول الله ﷺ په خوله مبارکه و، بل طرف ته دمسلمانانو خلیفه هم و، صاحب دکشف اوکرامت هم و،دومره طاقت اوتوان خدای پاک ﷻ ورکړی و چې یوځل په مدینه منوره

باندې زلزله وشوه نوده زمکه په پښه ووهله اوورته ويې ويل چې ولې ښورې؟ په تاباندې دخدای پاک ﷻ نظام قائم نه دی؟ نوترڅوپورې چې دی دمسلمانانو خليفه و بيا زلزله نه وشوه.

دحضرت عمر فاروق ﷺ دېرزيات مناقب دي که يې څوک بيان کړي نوپوره کتاب ورنه جوړيږي ؛خو له دې ټولو صفتونو اوکراماتو سره سره ده ته خپل ځان کمزوری ليدل کيده اوله حضرت حذيفه ﷺ نه پوښتنه کوي چې په ماکې خوبه دمنافقانو علامه نه وي موجوده اوزه خو به منافق نه يم؟ الله اکبر!

حضرت ابراهيم ﷺ به دومره ژړل چې دژړا آواز به يې تر يو ميل پورې رسيده. يو ځل خدای پاک ﷻ حضرت جبرائيل عليه السلام ورته را وليږه اوورته وايې چې ورشه حضرت ابراهيم ﷺ ته زما سلام ووايه اودا ورته ووايه چې دوست له دوسته دومره داريږي؟ ته خو خليل الله يې زما دوست يې.

حضرت جبرائيل ﷺ راغی اودخدای پاک ﷻ سلام يې ورته وويلې اوله سلام نه وروسته يې هغه پيغام ورته بيان کړ.

حضرت ابراهيم عليه السلام په ځواب کې ورته وايې چې زه چې دخدای پاک ﷻ عظمت اولويې ته ګورم اوبل طرف ته خپلو تقصيراتو ته وګورم نوزما نه داخبره هيره شي چې زه دخدای پاک ﷻ د دوستانو له جملې نه يم.

حضرت نبي کريم ﷺ به دومره عبادت کاوه چې پښې مبارکې به يې وپړسيدې اوداسې به يې ژړل چې دسينې مبارکې به يې داسې غرقی و لکه کتو چې ايشيږي اويالکه ميچن چې تاويږي

په هغوی مبارکینو کې عجب نه و ،خپل ځان غټ نه ورته معلومیده، خپل مقام هم ورته معلوم و،چې وایې ﴿ أَنَا سَيِّدُ وُلْدِ آدَمَ وَلَا فَخْرَ ﴾ یعنې زه دآدم علیه السلام داولاد سردار یم اوپه دې فخر نه کوم . زه به په قیامت کې اول راپورته کیږم اوفخر نه کوم، زه به دجنت در وازه خلاصوم فخر نه کوم.

دارنګه دحرص ماده ،دجاه طلبي اوقدرت پرستي ماده ،دشهوت پرستي ماده ،یعنې شپیته (۲۰) باطني امراض طریقې محمدي ذکر کړي دي.

لکه شرک اونفاق چې انسان ابدي تباهي ته بیايي دارنګه دغه مرضونه هم انسان ته تباهي ته بیايي.

نوددغو مرضونو دعلاج له پاره امام غزالي صاحب پدغو طریقو سره وښوده چې علاج ددغوامراض باطنیو چې کیږي ظاهره بدن دانسان ددوشیانو نه جوړ ده روح اوجسد ،دغه ظاهري بدن چې هم امراض لري اوددغو مرضونو په دنیاکې علاج اواصلاح کیږي ،ددغې معالجې په دنیاکې ماهرین موجود دي.

حضرت نبي کریم ﷺ فرمايي : ﴿ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءٌ ﴾ دهر مرض له پاره دوا شته.

اوس نوپه دنیاکې چې دانسان سترګې وخوږیږي ،دسترګو ډاکټرته ځي، معالج موجود دی اودمعدې ډاکټر ته نه ورځي اوردچا چې دمعدې تکلیف وي ظاهرا دبدن یوتوته ده مریضه ده ددغه جسماني مرض دعلاج له پاره هغه ډاکټر ته ورځي چې په معده کې مهارت لري یعنې هرڅوک چې په کوم مرض باندې لګیا

وي دهغه مرض ماهر ته ورځي اوعلاج وربانديږ کوي اوکه هغه مریض دخپل مرض دماهر ډاکتر ته مراجعه نه کوله خلک يې هم ملامتوي چې مرض اوتکلیف دمعدې لرې او علاج دسترګو په ډاکتر کوي. اوهغه ډاکترچې واقعې پوه وي ،دهغه مرض چې دده مسلک اوتخصص پکې ،علاج کوي.

دانسان روح همدغسې مریضه کیږي .خدای پاک ﷻ د منافقینو په باره کې وایې چې :﴿ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا ﴾ ددوی په زړونو کې مرض ده .نوزیات به کړم ددوی مرض.

روح يې مریضه اوضعیفه دی. اودغه آیت مبارک چې نازل شو نود دوی مرضونه اومنافقت ورځ په ورځ زیاتیدل.

اوس نو ددغه روحي مرض معالجین هم موجود دي ، معالعجه يې هم موجوده ده، داسې نه دی چې دا مرض لاعلاجه ده اويا يې ماهر ډاکتران نشته ،نوخپل ماهرینو ته به ورځي اوهغه به ددغه مرض موافق دوايې درکوي ځکه امام غزالي (رحمه الله) وايې چې ددغو مرضونو دعلاج طریقه دادی چې کامل شيخ ته ورشي اوبیعت وکړي، ورشي هغه ته ځان تسلیم کړه ؛نوهغه به دتاد مرضونو علاج وکړي.

لکه مخکې دلطائفو په بیان کې موږ وویلې چې دلطائفوپه ځای کې متضاد صفات دي چې ددغو اذکارو په شروع کولو سره يې هغه صفات حمیده منځ ته راځي.

اوس نوموړ باید دغو څلورو طریقو دعلاج ته په کلکه متوجې شو نوموړ به بیا کامیابه شو اوزموږ په قول اوفعل کې به خدای پاک ﷻ بیا اثر پیدا کوي.

## کومه خبرچې دزړه له تل نه وي په زړونوبه اثر کوي

دحضرت حسین احمد مدني (رحمه الله) دزوی جلسه ده اوپه هغه جلسه کې دده زوی بهترین تقریر وکړ خوپه خلکو کې یې اثر ونکړ. حضرت مدني صاحب پورته شو یوائې دوه خبرې یې وکړچې موږ بیګاه دخپلو وړو ماشومانوله پاره پیرني تیاره کړې وه، پیشو راغله هغه یې وخوړه دابچیان دغسې وږې ویده شول؛نوټولو خلکو په ژړا شروع وکړه.

بیا چې خپل کورته راغلل زوی ته یې وویل چې زویه جلسه وشوه؟ هغه ورته وویل هو!

څرنګه وه؟

هغه وویل چې ډېره ښه وه.

مدني صاحب ورته وویل چې زما اوتا دخبرو په فرق پوه شوې؟تاخو ډېرښه آیتونه اوحدیثونه وویل .ډېرې ښې خبرې دې وکړې؛خوپه خلکو کې دې کوم آثر ولید؟ هغه وویل چې نه.

مدني صاحب ورته وویل چې ګوره مایوه عادې خبره وکړه، کوم آیت اوحدیث نه وو خوپه خلکو کې یې تا اثر ولید؟ زوی یې وویل هو!.

ددغه وجه څه دی ؟

هغه ورته وویل چې زه نه پوهیږم.

مدني صاحب ورته وویل چې ددې وجه داد، چې زما خبره دزړه نه وه او په زړو یې اثر وکړ اودتا خبره په ژبه وه څکه یې هلته اثر ونکړ.

حضرت مدني صاحب ورته وویل چې دا اثر هلته پیداکیږي چې دزړه تعلق له یوشیخ کامل سره پیداکړي اوله هغه نه بیعت وکړي نودتا زړه به صفا شي اودتا دزړه اثر به بیا په نورو خلکو کې پیدا کیږي.

مونږ وینو چې ډېر وخت ډېر خلک په ډېره بلیغه طریقه وعظ اونصیحت کوي خو په موږ آثرنه کوي اوډېر خلک په ډېره کمزورې اوساده الفاظو وعظ کوي خوډېرښه اثر کوي.

نوخپله دخپلو عیبونو داصلاح له پاره تر خپلووسه پورې چې څومره امکان لري باید خپل کوشش وکړو نوله کوشش نه وروسته چې بیاهم اصلاح نه راغله نوپه اخرت کې نومعذوره یو - خدای پاک ﷻ موبیا نه نیسي :﴿ لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾.

نوپه خپله به سعی اوکوشش کوو چې څرنګه داتکبر لرې کړو، عجب اوجاه پرستي ،شهوت پرستې څرنګه لرې کړو ،یعنې اخلاق رذیله څرنګه لرې کړودې مرضونو دمعالجې بالکل کوشش ونکړو بیا به دقیامت په ورځ موږ خدای پاک نیسي :﴿ وَإِن تُبْدُوا مَا فِيٓ أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ ٱللَّهُ ﴾ بیا به موخدای پاک ﷻ نه

نيسي چې تاددغه خپل مرض علاج ولې نه کوو ،ماهرين موجود دي، معالج موجود دی اودتا دهغوی سره تعلق نه ساتلو بيا مو خدای پاک ﷻ نيسي ،عذر نشو ويلای.

نور به تفويض داموړو خدای پاک ﷻ ته کوو چې دخپل ځان اصلاح وکړو، که اعمال مو قبولوي اوکه نه ، که جنت راکوي اوکه جهنم ،هغه دده درحم ،عدل ، فضل اواحسان دی چې دچاسره يې په کوم عنوان کوي هغسې به يې کوي .

ونفوض امورنا الى الله ان الله بصير بالعباد

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا و سندنا وشفيعنا و مولانا محمدوعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين.

الله الله الله

الله

# (۱٤) مجلس

## دذکر دمجلس اهمیت

﴿قال الله تعالی وتبارک وتعالی :

فَاذْكُرُونِيٓ أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ﴾

دذکردمجلس په هکله دقرانکریم آیتونه اودحضرت نبي کریم ﷺ احادیث مبارکه چې سړی وګوري نوبیا ددغې حلقې حقیقت هلته سړي ته معلومېږي چې دغه دذکرحلقې دخدای پاک ﷻ په نزد څومره لوی مقام لري حضرت رسول الله ﷺ فرمایي : اذا مررتم بریاض الجنة فارتعوا ﴾ کله چې تاسو دجنت په باغو کې تیرېږئ نوپدغو باغچوکې ښه وڅرئ . صحابه کرامو ﷺ عرض وکړ یارسول الله ، دجنت باغچې کومې دي ؟ حضرت رسول الله ﷺ ورته وویل چې په کوم ځای کې خلک سره جمعه شوي وي اودالله تعالی ﷻ په ذکر مشغول وي نودهغوی داسې مثال دی لکه دجنت په میووکې چې لګیا وي اومیوې خوري ځکه دخدای پاک ﷻ ذکراویادول دجنت دخول سبب ګرځي ؛نوتاسو هم په کې وڅرئ ،څه برخه په کې وکړي چې ددغه ذکرپه برکت تاسې جنت ته داخل شي .

تردغه نه لویه خبره ده چې خداوندمتعال ﷻ وايي: ﴿فَاذْكُرُونِيۤ أَذْكُرْكُمْ﴾ تاسې مایادکړئ زه به تاسو یادکړم.

په دې مجلس کې چې موږ دخدای پاک ﷻ ذکر کوو؛ نوواجب تعالی ﷻ دټولو ملائکو په مجلس کې په دغو خلکوفخرکوي.

په حدیث مبارک کې راځي. حضرت معاویه رضي الله عنه را ووت اوپه جومات کې دذکرپه مجلس کې کېناست نوله خلکو نه یې پوښتنه وکړه چې تاسې دلته ولې ناست یئ؟ دوی ورته وویل چې موږ دخدای پاک ﷻ ذکرکوو نو ده ورته وویل چې دتاسې دې په خدای قسم وي چې دبل شي له پاره نه یې ناست؟ هغوی ورته وویل چې زموږ دې په خدای پاک ﷻ قسم وي چې دبل غرض له پاره نه یو ناست.

حضرت معاویه رضي الله عنه ورته وایي چې ماتاسې ته قسم له دې وجې درنکړچې زه په تاسې بدګمانه یم ماقسم دبلې وجې درکړ. اواول دځان په باب کې داحتیاط خبره کوي چې زه حضرت رسول الله ﷺ ته څومره ورنږدې وم، دحضرت رسول الله ﷺ اوښې ، دده خور دحضرت رسول الله ﷺ دبیبیانو مبارکوله محارمو څخه و.

خووایې مااحتیاطاً ډېر احادیث ندي نقل کړې ترڅو چې له مانه تغیرېکې رانشي،لکن همدغه حضرت معاویه رضي الله عنه ددغه دذکرپه مجلس کې یو روایت نقل کوي چې حضرت رسول الله ﷺ یو وخت را ووت ،صحابه کرام رضي الله عنهم دذکر په مجلس کې ناست و پوښتنه یې ورنه وکړه چې تاسې دلته څهٔ شي کېنولي یئ ؟ دوی

مبارکینو ورته وویل چې موږ د ذکر له پاره ناست یو. حضرت رسول الله ﷺ ورته وویل چې دتاسې دې په خدای قسم وې چې دبل غرض له پاره نه یئ ناست ؟ صحابه کرامو ﷺ ورته وویل چې زموږ دې په خدای قسم وي چې دبل څه شي له پاره نه یوناست.

حضرت رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته ﷺ وایې چې تاسوته ماقسم ددې له پاره درنکړچې زه په تاسې بدګمانه یم ،چې تاسودرواغ وایئ ،ددې له پاره مې قسم درکړچې حضرت جبرائیل اٰمین اوس راغی چې خداوندمتعال ﷻ ددې مجلس په کسانوباندې چې دخدای پاک ﷻ ذکر کوي، دتولو ملائکو په وړاندې فخرکوي. اوملائکوته وایې چې زما بندګانو ته وګورئ ،تاسې ویل چې په زمکه کې انسانان مه پیداکوه ،نن دزمکې په سر زما په کور کې ناست دي اوزما ذکر کوي.

## کوم ذکر غوره اوبهتر دی د جهراوکه په پټه ؟

هغه ذکر غوره دی چې په خوله اوزړه دواړو سره کیږي. په خوله لکه وعظ اونصیحت چې موږ کوو یاپه اکثروځایونوکې چې داماذدیکرله لمانځه وروسته ختم جواجګان اونور اورادچې کیږي.

اودزړه ذکر چې یواځې په زړه سره الله – الله ویل.

نوبهترین ذکر داده چې دواړه سره جمع شي اوکه هروخت د دواړو وس نه وي نوبیا بهتره ذکر دزړه ده.

مرقات دمشکوة شریف شرحې رانقل کړي دي چې حضرت نبي کریم ﷺ وایې: خیرالذکر الخفی ) بهترین ذکر هغه ده چې پټ وي.

په یوبل حدیث کې له حضرت ام المؤمنین رضی الله عنها څخه نقل شوې دي حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي چې څوک په زړه کې یو وار (الله) دي روایې داد خولې دذکرله (۷۰) وارو د (الله) ویلونه غوره دی او دقیامت په ورځ چې کوم انسان دخدای پاک ﷻ دربار ته راشي، نوهغه ملائکې چې دانسانانو عملنامه لیکي ،نودهرانسان ټول اعمال حاضر کړي ،خدای پاک ﷻ پوښتنه ورڅخه وکړي چې ددغه انسان سره بل څه عمل نه دی پاتې ؟ دوی به ورته ووایې ای رب تعالی ! ده چې څه کړي و هغه موږ لیکلي اویاد کړي و هغه موټول راوړې دي . خداوندمتعال ﷻ دغه انسان ته ووایې چې دتایوقسم عمل داسې دی چې هغه یوازې ماته معلوم دی چې هغه د زړه ذکر دی ،خدای پاک ﷻ به دحشر په ورځ دزړه ذکر چې ملائکوته هم معلوم نه وي ښکاروي .داولې څکه چې دا له ریا اوعجب هرڅه نه خالي وي ؛نوخدای پاک ته دزړه ذکر ډېر محبوب دی څکه یې له څان سره ساتې .

اوپه حدیث کې راځي چې کوم ملجس بې له ذکر دخدای پاک ﷻ نه تیر شي اوپه دې مجلس کې دخدای پاک ﷻ ذکر ونه شي نودغه مجلس په دوی باندې افسوس وایې ،په کوم ځای چې انسان پروت وي اوپه هغه ځای کې دخدای پاک ﷻ ذکر ونکړي نودغه ځای دقیامت په ورځ په ده افسوس وایې .

بیا به هلته ارمان کوي چې څرنګه مې په غفلت کې عمر تیر کړ.
اوپه یو روایت کې راځي چې په کوم ځای کې چې خلک ناست وي اوپه هغه کې دخدای پاک ﷻ ذکر ونکړي اوپه حضرت نبي کریم ﷺ باندې درود ونه وایي نو دغه مجلس به د دوی په باب کې افسوس وي.
په یوبل روایت کې راځي چې په کوم ځای کې خلک ناست وي اوهغه دخدای پاک ﷻ ذکرونکړي اودوی سره جدا شي نوددې داسې مثال دی لکه خر چې مردار شي اودوی پرې راجمع شوې وي اوخورې یې اوبیا سره تقسیم شي.
نودهر آن ،هرساعت اوهر ملتې به زمونږ نه پوښتنه کېږي داچې دسړي زړه په ذکر لګیاشو بیا دانسان لطائف په ذکر لګیاشو،دانسان پوستکی په ذکر لګیاکیږي ،ټول بدن په ذکر لګیا کېږي ، بیاکه پروت وي،ناست وي اوکه په نوروکارونو هم لګیا وې دتازړه به ذکر کوي ، لکه لوی اومهربان خدای پاک ﷻ چې فرمایي:
﴿ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَٰرَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ ﴾ دا هغه خلک دي چې تجارت اوبیع یې دخدای پاک ﷻ له ذکر څخه نه غافلوي،اودا ذکرده چې ددې په سبب دسړي له خدای پاک ﷻ سره عشق اومحبت پیداکیږي،مینه اوالفت پیداکیږي . بیا خدای پاک ﷻ دغه انسان عاشق ګرځوي،بیا خدای پاک ﷻ سړی غټ مقام ته

رسوي ،لکه مخکې چې د حضرت بي بي رابعې قیصه په تفصیل سره بیان شوې ده.

هغې ته خدای پاک ﷻ دهمدې ذکر په برکت سره څومره غټ مقام ورکړی و. سره له دې چې دا یوه ښځه وه خو دخدای پاک ﷻ په عشق کې څومره غرقه تللې وه،په دنیاکې خدای پاک ﷻ داسې عزت ورکړچې دکعبې شریفې حقیقت ددې استقبال ته راغې. په اخرت کې به ددې په شفاعت سره په زرګونوخلک جنت ته داخلیږي.

نوذکر په مجلسونوکې شرکیدل مستحب دي ،کوم رحمتونه چې په دې مجلسوباندې خداوندمتعال نازلوي هغه په ګوښې ځای کې نه پیداکیږي نوڅومره چې دسړې وس کیدای شي باید په داسې اجتماعي عبادت کې خدای پاک ﷻ زیات رحمتونه نازلوي.

ملائکې ددې له پاره ګرځي چې داسې یوه ډله پیداکړي چې په هغه کې دخداوندمتعال ذکر اوعبادت کیږي نویوبل غږ وکړي چې راشئ ستاسې چې کوم مقصود و هغه موپیداکړ،دومره ملایکې به دغه مجلس راتاو شي چې تراسمان پورې ورسیږي بیا خداوندمتعال ﷻ له دې ملائکوڅخه پوښتنه کوي چې زما بندګان به څه شي لګیاو ؟ دوی به ورته ووایې چې دتا په ذکر مشغوله و. خداوندمتعال ﷻ بیا ورته ووایې چې دوی څه غوښتل ؟ هغوی به ورته ووایې چې جنت یې غوښت. خدای پاک ﷻ بیا ورته ووایې چې جنت یې لیدلی و؟ هغوی به ورته ووایې چې نه جنت خویې نه

و لیدلی. خدای تعالی ﷻ بیا ورته ووایې چې که دوی جنت لیدلی وای نوڅه به یې کول؟ هغوی به ورته وایې چې ترډې به یې نوره هم کوشش کاوه.

خدای پاک ﷻ بیا ورته ووایې چې دوی له څه څخه پناه غوښتله ؟ هغوی به ورته ووایې چې دجهنم څخه یې پناه غوښتله. خداوندمتعال ﷻ بیا ورته ووایې چې جهنم یې لیدلی و؟ هغوی به ورته ووایې چې نه جهنم خویې نه و لیدلی .خدای پاک ﷻ به ورته ووایې چې که یې لیدلی وای نودوی به څه کول ؟ هغوی به ورته ووایې چې که یې لیدلی وای نو لا به یې زیاته پناه ورنه غوښتله اوله ګناه څخه به ځانونه وساتې .

اوله تا نه یې مغفرت غوښت. خدای پاک ﷻ به ورته ووایې چې زه یې لیدلی وم ؟ دوی به ورته ووایې چې نه لیدلی خویې نه وې . الله تعالی ﷻ به ورته ووایې چې که ماووینې نودوی به څۀ کوې ؟ هغوی به ورته ووایې چې که تاووینې نوترډې به یې لا نوره هم عشق اومحبت زیات شې .بیا به خدای پاک ﷻ ورته ووایې چې تاسو ټول په دې شاهد اوګواه اوسیږئ چې ددې مجلس خلکوته چې څه غوارې هغه مې ټول ورکړل اوچې له څه نه پناه غوارې له هغوڅخه مې پناورکړه اودوی ته مې ټول ګناهونه معاف کړل .

بیا ملائکې ورته ووایې ای خدایه ! په دې خلکو کې خو یوداسې سړی هم موجود و چې دخپل حاجت له پاره راغلی و،دچاسره یې شخصې کارو ؛خدای پاک ﷻ به ورته ووایې چې دا

داسې مجلس اوتولی دی چې څوک ددوی سره ناست وي هغه به هم نا امیده نشي.

نوغرض دا چې موږ اوتاسې باید دداسې مجلسونو څخه غافله نشو اوپه اهمیت یې ځانونه پوه کړو.

کتابونه یو حدیث رانقل کوي چې یونیک مجلس دذکریاعلم ددوو زرو مجلسونو ،چې په هغه کې لهو اولعب ،توکې ارنکارې شوې وي ،پدغه یوه مجلس سره معاف کیږي . دومره خدای پاک ﷻ رحیم ذات دی اودومره دفخر ځای دی ، دومره غټ نعمت دی ،ددې مجلسونه باید قدر وشي.

واخردعوانا ان الحمد لله رب العالمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى آله واصحابه اجمعين

# ۱۵ مجلس

## د ((لطائف خمسه )) ځایونه او فائدې

د هر انسان وجود الله تعالی ﷻ له لسو شیانو څخه جوړ کړی دی، چې:

۱ ـ عالم خلق: له خاورې، اور، اوبه، هوا، او نفس.

۲ ـ عالم امر: قلب، روح، سِر، خفي او اخفی څخه عبارت دی.

اوس مونږ له عالم امر څخه بیان کوو. دا پنځه لطائف چې د عالم امر دي چې هغه قلب، روح، سِر، خفي او اخفی ددې لطائفو ځایونه کوم دي؟

ظاهراً خو اوله لطیفه: د چپ (تي) نه درې ګوتې لاندې ده چې (قلبي) لطیفه یې بولي.

**دوهمه لطیفه:** له ښي (تي) نه لاندې دوه ګوتې ده چې ((وحي)) لطیفه یې بولي.

**دریمه لطیفه:** د ښي (تي) نه برسېره دوه ګوتې ده چې (سِري)لطیفه یې بولي.

شلورم لطیفه د چپ (تي) نه دوه ګوتې پورته لږ د سینې په طرف ده، چې (خفي) لطیفه یې بولي.

پنځمه لطیفه: د سینې په منځ کې ده چې (اخفی) لطیفه یې بولي.

دا خو یې مونږ یواځې ځایونه وپېژنو، خو په بدن کې دننه چې زړه ده، ینه (جیګر) ده، توری ده، تریخی ده، بډوګی (پښتورګی) ده، نو اوس ددې خبرې وضاحت ضروري دی چې دا وظیفې د بدن په کومو برخو کې دي؟

**قلبي لطیفه:**

اول قلبي لطیفه ده، ددې ځای د بدن په یوه داسې ټوټه کې دی چې له دې ځخه د بدن ټولو برخو ته رګونه تیت شوي دي، چې هغې ټوټې ته زړه وایي، نو ددې وظیفې مرکز په دغه ځای کې ده. اوس دغه زړه د ملائکو د الهام ځای هم ده او د شیطان د وسوسې ځای هم ده.

حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي چې: په زړه کې دوه کوټې دي، یوه کوټه ځای د شیطان د تصرف ده، یوه کوټه ځای د ملائکې د تصرف دی. کله چې انسان د الله تعالی ﷻ په ذکر لګیا شي، نو په دې وخت کې شیطان منډې رامنډې شروع کړي، ملائکې الهامات شروع کړي، له نیکو اعمالو سره د انسان مینه پېدا شي، او کله چې بیا

د انسان زړه غافله شي نو شیطان خپله منبوکه په زړه کې کېږدي او وسوسې ورته شروع کړي.

## د زړه صفات

زړه د بنائست ، معرفت او محبت او صبر ځای ده، کله چې مرید په ذکر شروع وکړي، نو له دې ځایه د بدن ټولو برخو ته رګونه تللي دي، نو په واقعیت کې د ټول بدن له الله ﷻ سره تعلق پیدا شي، اوکه زړه غافله شي نو بیا شیطان رنګارنګ وسوسې وراچوي اودغه وسوسې ټول بدن ته سرایت وکړي، څکه خو حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي: ( الا انّ فی الجسد مُضغۃً اذا صلحتْ صَلَحَ الجسدُ کلهُ وَاذا فسدت فسد الجسد کله اَلاَ وَهِیَ القلبُ. )

د انسان په بدن کې یوه ټوټه ده، که هغه اصلاح وي، نو ټول بدن اصلاح کېږي، که هغه فاسده وه نو ټول بدن فاسدیږي. او واورئ چې: هغه ټوټه زړه ده.

اوس نو چې د انسان زړه په ذکر لګیا شو نو په زړه کې یې چې کوم رذیله صفات دي لکه حسد، کبر، کینه او داسې نور بېکاره صفات نو دا ټول خدای پاک ﷻ لرې کړي اوپه ځای یې بیا د معرفت او محبت صفت پیدا کېږي، له الله ﷻ ، حضرت محمدرسول الله ﷺ او له اولیاء الله وو سره یې مینه پیدا کېږي، صبر ، تواضع او حِلم پکې پیدا شي او بیا په تکلیفونو بې صبري نه کوي، تکبر نه کوي او له چا څخه انتقام اخیستلو ته هم زړه نه ښه کوي، نو ( قلبيْ )

لطیفه له غوښې ټخه مراد نه ده، بلکې لطیفه قلبي ځان ته یو نوراني کیفیت ده، چې په دې زړه کې پیدا کېږي. کله چې دغه کیفیت په زړه کې پیدا شو، نو په انسان کې مثبت تغیرات شروع شي، رذیله صفات ورځخه لیرې او ښک صفات بیا پکې ځای پیدا کړي.

زړه ته په عربي ژبه کې قلب وایي، قلب په عربي کې اړولو ته وایي، نو دا زړه هم په یوه حال باندې نه وي ، اوړي را اوړي، نو له دې امله هر وخت ذکر په کار ده، ځکه حضرت نبي کریمﷺ به چې کله دعا کوله نو دا به یې ویل: ( یا مقلب القلوب ثبت قلبي علی دینکَ ) ای د زړونو اړونکیه ! ته زما زړه په دین ثابت او محکم کړې. زړه دهغه چرګ د ښکې مثال لري چې په بیابیان کې پرته وي، باد یې کله په یوه او کله په بله خوا اړولي . نو کله شیطان تصرف شروع کړي او کله بیا د ملائکو تصرف شروع شي، په یوه او بل اړخ یې اړوي، نو ځکه کله په زړه کې تکبر او کله بیا حسد او کله نور داسې رذیله اخلاق پیدا کېږي.

نو له دې امله به ته په خپل زړه پسې متوجه یې ، ترڅو هغه غلط طرف ته وانه وړي. انسان به په دې اکتفاء نه کوي چې بس وظیفه مې واخیسته ، زړه مې یوځو ورځې ذکر وکړ ، اصلاح شو، نور څه ته ضرورت نشته. بلکې دا کار دائمي حضور غواړي، که په غته سلسله خبره وکړو، نو انبیاء علیهم السلام معصوم دي، یعنې الله تعالیﷻ ددوی حفاظت کړی ، دګناهونو او بدوکارونو شوق بالکل په دوی کې نشته. او اولیاء معصوم نه دي، مګر محفوظ

دي، یعنې خدای ﷻ له دوی سره ملائکې تاکلي دي، ترڅو زړه یې د نیکي طرف ته مائله وي، الهامات ورته شروع کړي، ګناهونه ورڅخه نه کېږي، که بالفرض ورڅخه وشي، خو فی الحال پښېمانه شي، ځکه دخدای پاک ﷻ سره یې تعلق جوړ وي، بیا عاجزي پکې پیدا کېږي او په ګناه باندې توبه وباسي، په ګناه باندې یې دوام نه پاتې کېږي.

**( روحي ) لطیفه:**

د انسان په بدن کې دوهمه لطیفه د ( روح ) ده، دا هغه لطیفه ده چې الله تعالی ﷻ په ینه ( جیګر ) کې پیدا کړې او اصلي مرکز یې ینه ده.

دغه جیګر چې د روح معدن ده، په دغه ځای کې رحمت او شفقت هم ده، د محبت او خوشحالي مرکز ده او له دې سره سره بلې خوا ته د صفرا او سودا مرکز هم دغه ځای ده.

اوس نو دغه روحي لطیفه چې په ینه کې ده، نوداچې په ذکر لګیا شوه بیادا صفرا او سودا چې د ګناهونو په اثر پیدا شوي دي او انسان نورو ګناهونو ته هڅوي نوددې ذکر په شروع کېدو سره دا صفرا او سودا له منځې ځي او حمیده صفات یې ځای نیسي. بیایې په نورو انسانانو باندې زړه سوځي، صلهٔ رحمي اوشفقت پکې پیدا شي، بیا په دغه ذِکر سره ورته خوشالي او سکون حاصل شي، له الله تعالی ﷻ سره یې تعلق پیدا شي، اطمینان یې په برخه شي. ځکه چې الله تعالی ﷻ په خپله په خپل مقدس کتاب کې فرمایي چې: ﴿

﴿أَلَا بِذِكْرِ ٱللَّهِ تَطْمَئِنُّ ٱلْقُلُوبُ﴾ سوکالي او سکون، خوشالي او اطمینان له الله تعالیﷻ او دهغه له دین سره په محبت کولو پیدا کېږي.

**(سِرِي) لطيفه:**

دریمه (سِرِي) لطيفه ده، ددې لطیفې اصلي ځای توری ده، دا توری محل د مشاهدې هم ده، کله چې صفا شي نو انوار او تجلیات هم ورته معلومیږي، د خوشحالي او فرحت ځای هم ده، همدا راز د خندا، غرور او تکبر محل هم ده.

اوس نو چې د یو انسان توری په ذکر لګیا شو نو ددغه ذکر په نُور سره دغه اضافي خنداګانې ختمیږي او ورسره غرور او تکبر هم له مینځه ځي، بیا دلته د مشاهدې حالت راځي، انوار او تجلیات په خپلو سترګو ویني، چې له هغې سره ژړاپیدا کېږي، تواضع پیداکېږي اوپه ګناهونو باندې نِدامت او پښېماتتیا پیدا کېږي.

**(خَفِي) لطيفه:**

څلورمه (خَفِي) لطيفه ده، ددې لطیفې مرکز په تریخي کې دی، دا تریخی محل دِ غم هم ده اود ډار او ژړا هم، بلې خوا ته محل د غضب، غلظت او سختی هم ده.

کله چې د یو انسان دغه تریخی په ذکر باندې شروع وکړي، نو غضب او هغه بداخلاقي او غلظت ورسره له مینځه ځي، بیا په اخلاقِ حمیده سره ښائسته شي او همیش به دخدای ﷻ او آخرت په

لوري متوجه وي. د الله تعالیﷻ په نافرماني کولو سره به غمجن کېږي، مثلاً لمونځ ورڅخه پاتې شو، یا روژه، یا داسې نور عبادات یې پاتې شوي وي نو دی وربانديې سخت خفه وي. او د الله تعالیﷻ د عِتاب څخه په وېره کې وي او د ذمیمه اخلاقو په صادریدلو سره ورته ژړا پیدا کېږي، کله چې دغه تریخي اصلاح شي نو بیا یې د الله تعالیﷻ لوري ته رجوع پیدا شي.

**(أخفی) لطیفه:**

پنځمه د (اخفی) لطیفه ده، ددې لطیفې مرکز الله تعالیﷻ په بدوګي کې ایښی ده، چې د سینې د برابري نه دوارو بدوګیو ته القا د ذکر کېږي.

دا بدوګی د شهوت، جرئت، شجاعت او حرص ځای ده، کله چې د انسان بدوګی د الله تعالیﷻ په ذکر لګیا شي نو د ذکر د اثر له امله شهوت او حرص ورک شي، د مسلمان د قتلولو جرئت ورک شي، دلته د انسان په بدن کې دهغو ذمیمه صفاتو په مقابل کې نېک صفات پیدا شي، دغه شجاعت وي عفت وي، د حرص په ځای زُهد وي.

اوس نو انسان د لسو شیانو څخه مرکب ده، په لسو شیانو کې دا پنځه د عالم امر دي، چې هغه دا پنځه مرکزونه شول، ددغو مرکزونو صفات مونږ اجمالاً وپېژندل چې دواړه صفات لري، داسې صفات هم لري چې په هغې سره انسان له خدایﷻ څخه بېګانه کېږي او داسې صفات هم لري چې انسان خدایﷻ ته وربانديې

نږدې کېږي، د لرې کېدو منشاء غفلت ده، چې دغه ځایونه له ذکر ځنې غافله وي نو انسان به دخدای پاک ﷻ نه لرې کېږي اود نږدېکت منشاء هغه بیا ذکر ده، چې دغه ځایونه دخدای پاک ﷻ په ذکر لګیا شي نو بیا د ملائکو له طرفه ورته الهامات کېږي ، بیاپه بدن کې د معرفت نُور وي، بیا دخدای تعالی ﷻ سره یې علاقه وي، له ګناهونو څخه ځان ساتي او له نیکي کولو سره یې مینه زیاتیږي.

اوس نو چې دغه مرکزونه متضاد صفات لري، نو سړی به ورته متوجه وي ، که داسې وو چې دا ځایونه هروخت په ذکر لګیا وو نوبیا به دغه انسان ورځ په ورځ په دین کې ترقي کوي، کشفیات به ورته په برخه کېږي، ځکه په دغه ځایونو کې محل د مشاهدې شته. یعنې مقصود خو انوار، تجلیات اوکشفیات نه دي، خود انوارو اوتجلیاتو محل بدن ګرځي ، اصلي په بدن کې دغه قابلیت الله تعالی ﷻ ایښی دی.

## قرآن کریم د متقیانو له پاره هدایت ده

اوس دغه ځایونه دکفارو هم شته او دمسلمانانو هم، قرآن کریم مسلمانانو او کفارو ټولو ته راغلی ده، خو په خپله الله تعالی ﷻ د قرآن کریم د فائدې تخصیص تر متقیانو پورې کړی دی چې فرمایي: ﴿ هُدًى لِلْمُتَّقِينَ ﴾ دا قرآن د متقیانو له پاره هدایت ده، نو ځکه دغه خلک فائده ورڅخه اخلي. تفسیر بیضاوي لیکي چې: دا

قرآن خدای ﷻ تر متقیانو پورې ولې خاص کړی دی ؟ چې دا د متقیانو له پاره هدایت ده؟ حال دا چې قرآن کریم خو د ټولې دنیا د انسانانو له پاره رااستول شوی . وایي دا څکه چې: قرآن ، اسلام او شریعت د قوي غذا (طعام) مثال لري، قوي طعام او غذا هلته بدن ته قوت ورکوي چې بدن جوړ وي، که بدن ناجوړه و، نو بیا قوي غذا ورته ضرر رسوي. که یو سړی ملاریا نیولی وي نو غوړي ورته تاوان رسوي او که ګټه ؟ د قوت او طاقت شیان به وي خو چې بدن روغ نه وي بیاهمدا د قوت او طاقت خوراکونه ورته په ضرر تمامیږي. نودا دین او قرآن چې انسان ته ګټه رسوي هغه وخت یې رسوي چې اعتقاد یې سم وي، په هغه کې تقوی او خشیت من الله وي، دخدای پاک ﷻ د کلام عظمت او حیثیت یې پېژني، نو بیابه فائده ترې اخلي اوخدای پاک ﷻ یې ورته د هدایت ذریعه ګرځوي.

همدغه قرآن کریم وو چې په ابتداء کې به نوي نوي آیاتونه نازلېدل نو کفار به نور هم په خپل کفر کې سخت شول او مخالفتونه به یې زیاتېدل، لکه چې الله تعالی ﷻ فرمایي ﴿ فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا ﴾ یعنې د کفر او نِفاق مرض یې ورځ په ورځ زیاتیږي چې هغه شرک ده. اود مسلمان په حق کې بیا فرمایي چې:﴿ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّآ إِيمَٰنًا وَتَسْلِيمًا ۝ ﴾.

نود بدن اصلاح په دغو لطایفو باندې کېږي،دا بدن چې څومره اصلاح کېږي، قرآن کریم چې اثر کوي، دا د بدن مرکزونه چې

دومره اصلاح کېږي، ددغه قرآن کريم انوار او فيوضات بدن ته رسيږي، بيانو ورځ په ورځ يې ترقي په برخه کېږي. تردې پورې چې د الله تعالیٰ ﷻ د اولياوو په ډله کې شامل شي، چې بيا دده په يوه آيت باندې کارونه جوړيږي، اونورو خلکو ته په ټول قرآن عظيم الشان دومره فائده نه رسيږي.

په قرآن کريم کې کوم نقصان نشته، بلکې نقصان په ده کې وي، حضرت نبي کريم ﷺ په خپله زمانه کې به نفسِ نفيس موجود و خو مشرکينو چې وربانديې عقيده نه درلوده هرڅومره معجزې يې چې ورښکاره کړې، زړونه يې مرض وهلي وو نو هيڅ فائده يې ورته نه کړله، منافقين به د حضرت نبي کريم ﷺ په مجلس کې کېناستل، خو د هغه ﷺ خوږو خبرو به په دوی کې هيڅ اثر نه کاوه.

اومونږ الحمدلله چې په څوارلسمه صدۍ کې واقع يو، اود حضرت نبي کريم ﷺ مبارک احاديث اورو نو خوند ورڅخه اخلو، دا ځکه چې الحمد لله ايمان او اسلام راسره شته، سره له دې چې دوی موليدلي نه دي خو خوند يې شته، نو چې بدن جوړ وي که لرې ده ، که موليدلی نه ده بيا هم شوق شته، دا رنګه مونږ آخرت نه ده ليدلی بيامو هم ورسره شوق شته، الله تعالیٰ ﷻ مو نه ده ليدلی بيامو هم ورسره پوره پوره مينه ده، هيڅ شی مو نه دي ليدلي خو محبت يې راسره شته.

اوهغوی معجزې او نورهر څه يې په سترګو ليدل خو هيڅ ګټه يې ورته ونه رسوله ولې ؟ ځکه چې بدن روغ نه وو.

نو غرض داده چې: د طریقت فائده داده چې له بدن څخه اصلي او واقعي بدن جوړوي، بله يې دا فائده ده چې ددې اهل به شو چې د قرآن کریم څخه فائده راته ورسيږي، انساني بدن ددې لائق ګرځي چې له نبوي ﷺ احادیثو څخه خوند واخلي، د ائمۀ کرامو رحمهم الله له اقوالو څخه ګټه پورته کړو.

نو چې ذِکر دائم شي نوحضور دائم موجود شي، بیا نو الله تعالی ﷻ په هرڅه کې اثر پیدا کوي او خدای ﷻ ته يې نږدېکت په برخه شي.

**اللهم یا مُقلبُ القلوب ثبتْ قلوبَنا على دِينِكْ**

**وصلى الله تعالى على خير خلقه ونور عرشه سيدنا وسندنا وشفيعنا ومولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين**

  

# ۱۶ مجلس

## د ذکر اهمیت او دا چې انجام یې حقیقي حیات ده

(يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَٱثْبُتُواْ وَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٤٥﴾) [سورة الانفال]

د جنګ په وخت کې چې مسلمانان او کفار سره یو بل ته مخامخ شي، نو خدای پاک ﷻ مسلمانانو ته دا حُکم کوي چې: ای مسلمانانو تاسې ثابت قدم اوسئ او خدای تعالی ډېر یادوئ!

تفسیر لیکي چې: دلته د ذِکر دوه معناګانې دي، یوه معنا یې دا چې دا مونږ مشهور ذِکر ورته وایو، چې د ژبې او د زړه ذکر ده، دا نږې مُراد ده. رئس المفسرین حضرت عبدالله بن عباس ﷺ [ چې د حضرت نبي کریم ﷺ د تره زوی او د ټولو مفسرینو سردار دی او دا رتبه یې هم د حضرت نبي کریم ﷺ په خدمت کولو موندلې ده. یوه شپه د خپلې خور حضرت حفصه رضی الله عنها په کور کې چې دا حضرت نبي کریم ﷺ بي بي مبارکه وه، دی ویده و، کله چې حضرت نبي کریم ﷺ د شپې له خوا بیت الخلاء ته ولاړ نو حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ سمدستي پورته شو ، د اوداسه اوبه او

مسواک اود اوداسه نور ضروریات یې ورته راواخیستل، کله چې حضرت نبي کریمﷺ بېرته راوګرځېده نو پوښتنه یې وکړه چې: دا چا اینبي دي؟ مبارکې بي بي یې ورته وویل چې: ﴿هذا الغلام﴾ دغه هلک اینبي دي، سره له دې چې دی ډېر کشر هم و، نو حضرت نبي کریمﷺ ورته دا دعا وکړه چې: ﴿اللهُمَّ فَقِّهِهُ فِي الدينِ﴾ خدایه! ته دې ته په دین کې پوهه ور په برخه کړې، دهغو مبارکو دعاګانو برکت ده چې دهﷺ ته ﴿حِبرالامت﴾ اود ټولو مفسرینو سردار ویل کېږي!

نو راځو خپل اصلِ مطلب ته چې: حضرت عبدالله بن عباسﷺ د تېر شوي آیت په تفسیر او تشریح کې فرمایي چې: خدای تعالیﷻ د سخت تکلیف په حال کې چې د جنګ حالت ده، دکفارو په منځ کې راایسار ده، له دې ټولو سختیو سره سره الله تعالیﷻ خپلو اولیاوو او دوستانو مؤمنانو ته د ذکر کولو حکم کوي چې: ﴿وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا﴾ نو حضرت ابن عباسﷺ فرمایي چې: له دې نه دامعلومیږي چې خدای پاکﷻ ته انسان په ذکر کولو سره نږدې کېږي، نوځکه یې په هغه ډېر سخت ځای کې هم چې د تکلیف او جنګ حالت ده خپل دوست ته د ذکر کولو حکم وکړ.

حضرت ابن عباسﷺ فرمایي چې: له دې نه دا معلومیږي چې که یو سړی له شرق نه روان شي او تر مغربه پورې دا خپله هستي او مال وویشي او بل طرف ته یو سړی له غرب نه راروان شي او تر مشرق پورې کفار وژني له دې نه هم دغه د الله تعالیﷻ ذکر بهتر ده، ځکه چې اجر یې ډېر ده.

ددي خبرې دا معنا نه ده چې: دا ( الحمد لله ، سبحان الله، الله )
چې مونږ يې تل وايو دا مستحب عمل ده او حال داچې دا تر جهاد
بهتر ده، بلکې معنا يې داده چې: که سړی جهاد کوي او خدای
پاک ﷻ يې په ياد نه وي يا سخاوت کوي او خدای پاک ﷻ يې په زړه
نه وي دا ټول خو ښه عملونه دي خو چې د خدای ﷻ د رضا له پاره نه
وي اوپه هر آن او هر قدم کې دخدای پاک ﷻ طرف ته متوجه نه وي
نو بيا هيڅ فائده او اجر نه لري.

دا که په جهاد او سخاوت کې اجر پيدا کېږي يا په بل عبادت کې
وزن او ثواب پيدا کېږي دا هغه وخت چې د انسان مطلوب يواځې
او يواځې الله تعالی ﷻ وي اوهغه يې په ياد وي.

د ذکر خصوصيات لا متناهي دي، خو لويه خبره داده چې د ذکر
په سبب د انسانانو له خپل خالق ﷻ سره تعلق او مينه پيدا کېږي
اوپه دنيا کې هم دا قانون دی چې څوک له چاسره ډېره مينه لري نو
ډېر يې يادوي، د کوم کاروبار سره چې ډېره مينه لري هغه کاروبار
کې شپه ورځ مشغول وي، لنډه داچې له هر شي سره چې د چا تعلق
وي نو هغه ډېر يادوي. نو اوس که د يو چا له خدای تعالی ﷻ سره
تعلق زيات وي نو خدای پاک ﷻ به ډېر يادوي.

له پنځو لطائفو څخه وروسته ( ذِکر سُلطان ) شروع کېږي چې
ذکر قالبي ) هم ورته ويل کېږي، له دې ذکر سره له سر نه تر نوکانو
پورې ټول بدن د خدای تعالی ﷻ په ذکر مشغول وي، داسې حالت
چې انسان ته پيدا شي چې په بدن کې الله تعالی ﷻ ته خای ورکړ ،

قلب، روح، سِر، خفي، اخفی او قالب د بدن لنده دا چې په ټول بدن کې یې الله تعالی ﷻ ته څای ورکړ نو بیا دده له الله تعالی ﷻ سره واقعي عشق او محبت پیدا کیږي، بیا یې په هر عمل او قول کې اثر پیدا کیږي، که تلاوت کوي یا بل څه کوم عمل کوي هرڅه به د خدای تعالی ﷻ د رضا له پاره وي.

اصلاً دا مقامات چې انسانانو ته پیدا کیږي مثلاً د ﴿ سبحان الله یا الحمد لله ﴾ په ویلو سره ورته دومره ثوابونه په برخه کیږي دا دهغو خلکو له پاره چې له زړه نه یې ووایي او واقعاً یې له الله تعالی ﷻ سره مینه او اخلاص وي. که داسې نه وي نو همدا قرآن کریم چې د الله تعالی ﷻ کلام دی منافقینو به هم تلاوت کاوه، لمونځونه به یې هم کول خوخدای پاک ﷻ ددوی حال بیا داسې راته بیانوي چې : دا منافقین لمونځونو ته نه پورته کیږي مګر دا چې سُست وي اوکه کومه خبره کوي هغه په رِیا کاري بِناء وي.

د چا چې له الله تعالی ﷻ سره واقعي مینه پیدا شي نو بیا الله تعالی ﷻ دومره عزت او شرافت ورپه برخه کړي چې ځمکه، اسمان، حیوانات او حشرات یې ټول پیژني، بیا هغه شیان چې په ظاهره د انسان دښمنان وي هغه هم دده تابع شي اودده قدر او احترام کوي.

د صحابهٔ کرامو ﷺ په زمانه کې یو صحابي حضرت سَفِینه ﷺ له خپلو ملګرو څخه وروسته پاتې شو، لار ورڅخه ورکه شوه، په لار کې زمری په مخه ورغی، دی ﷺ ورته وایي چې: ای زمریه! ته هم د

خدای پاک ﷻ یو مخلوق یې او زه یې هم یو مخلوق یم، له ما څخه ملګري مخکې تللي دي ، ما خپلو ملګرو ته ورسوه، نو زمری ورته مخکې روان شو او لګی. به یې ورته وهله، کله به یې له ده ﷺ نه مخکې منډې وهلې کله یوه څنګ او کله بل څنګ ته، کله به ورڅخه شا ته شو، ترڅو کوم بل حیوان ورته ضرر ونه رسوي، تردې پورې چې هغه یې خپلو ملګرو ته ورساوه او زمری بېرته ترې راوګرځېده. سره له دې چې زمری د انسان دښمن ده ، خو ﴿ مَنْ كَانَ لِلّٰهِ كَانَ اللّٰهُ لَهُ ﴾ څوک چې د الله تعالیٰ ﷻ تابع شو بیا نو الله تعالیٰ ﷻ ددغه انسان محافظ او مددګار شي، بیا یې په حشراتو او حیواناتو هم تائید کوي، هغه یې نصرت کوي، له کومو شیانو څخه چې دغه انسان ډارېږي هماغه شیان یې بیا څوکیداري کوي.

## رښتیا ویل د دنیا او اخرت د نجات سبب دی

حضرت حسن بصري رحمه الله د وخت مشهور بزرګ جلیل القدر عالم او تابعي دی، په ده پسې حجاج بن یوسف ګرځېده، یو ځل پولیس ورپسې شول، تردې پورې چې دی د حضرت حبیب عجمي رحمه الله ځای ته راغی ، حسن بصري رحمه الله ورته وویل چې: په ماپسې عسکر را روان دي نو ګوره چې ما ورته ونه ښیې، حسن بصري رحمه الله کوټې ته د عبادت کولو له پاره ننوت، کله چې عسکر را ورسېدل نو له حبیب عجمي رحمه الله څخه یې وپوښتل

چې حسن بصري خو به دلته نه وي، هغه ورته وویل چې: هغه په دغه کوټه کې دی، کله چې عسکر کوټې ته ورغلل نو دی یې پکې پیدا نه کړ، بېرته راووتل او حبیب عجمي ته یې وویل چې: ته په مونږ مسخرې کوې، هغه بیا ورته وویل چې: په همدې کوټه کې دی، هغوی بیا ننوتل خو بیا یې هم څه ونه لیدل او بېرته ولاړل، حسن بصري رحمه الله چې کله له کوټې څخه راووت نو حبیب عجمي ته یې وویل چې: تا خو زه ورته وښودلم دا ولې؟ ده ورته وویل چې: ته زما رښتیاوو خلاص کړې کله چې ما رښتیا وویل نوخدای پاک ﷻ دهغوی سترګې ړندې کړې او ته یې ونه لیدلې.

په حدیث مبارک کې راغلي چې: حضرت نبي کریم ﷺ د بیت الله شریف ترڅنګ ناست و، د ابولهب د ښځې په حق کې چې کله د قباحت آیاتونه را نازل شول، نو دې ښځې یو غټ کاڼی را اخیستی او ویل یې چې: په دې به زه پیغمبر ﷺ ولم ، راغله په حَرم کې وګرځېده، سره له دې چې حضرت نبي کریم ﷺ د بیت الله شریف تر څنګ ناست دی، خو ددې سترګې الله تعالی ﷻ ړندې کړې او دی یې ونه لیده، بېرته ولاړه، صحابهٔ کرامو ؓ له حضرت نبي کریم ﷺ څخه وپوښتل چې: ته خو دلته ناست وې او ویې نه لیدې؟ ده ﷺ ورته وویل چې: خدای پاک ﷻ یې په ما باندې سترګې ړندې کړې او ویې نه لیدم.

نو چې څوک د الله تعالی ﷻ سره علاقه لري ، مینه، محبت او اخلاص لري نو بیا یې د دښمنانو سترګې ورباندې ړندې شي.

خو يو وخت همدا حسن بصري رحمه الله دحجاج عسکرو ونيوه
اود حجاج دربار ته يې بوتلو. حجاج له ده مبارک سره په سخته
لهجه خبرې او بحث شروع کړ، ده هم په ډېره زړورتيا د پوښتنو
ځوابونه ورکول، حجاج ورته وايي: ته نه يې خبر چې ته ما د څه له
پاره راغوښتی يې؟ ما ددې له پاره راغوښتی يې چې ځان درڅخه
خلاص کړم او مړ دې کړم، ده ورته وويل چې: د حضرت نبي کريمﷺ
څخه يوه دُعا منقوله ده چې که يوڅوک يې سهار ووايي نو تر ماښام
پورې به له ټولو آفتونو څخه محفوظ وي او که بيګا يې ووايي نو
بيا تر سهاره پورې به په امن کې وي، نو ما هغه دُعا ويلې ده، ته ما
ته هيڅ ضرر نه شې رسولې.

له دې خبرې وروسته حجاج دې پرېښود اودی په خپله مخه ولاړ،
يوه افسر يې ورته وويل چې: دادومره شپې او ورځې دې مونږ پسې
سترې او سرګردانه کړو، بيا مو ونيوه او له تاسره يې دومره تېزې
خبرې هم وکړې او له دې ټولو سره سره دې اوس دومره په آسانۍ
سره پرېښود او هيڅ دې هم ورته ونه ويل. دا ولې؟

حجاج د خپل فوځي افسر په ځواب کې وايي چې: وژل خو لا په
خپل ځای پرېږده، يواځې چې په زړه کې به مې دا خبره راوګرځېده
چې زه ورشم او ويې وهم نو له دې سوچ سره به له ده څخه زمريان او
ښاماران چار چاپېره ودرېدل، زه وېرېدم چې که ورپورته شم ختم به
مې کړي.

حجاج بن یوسف سره له دې چې دومره ظالم هم و، کتابونه لیکي چې: تقریباً یو لک صحابهٔ کرام ﷺ دده په بندیخانو کې شهیدان شوي، خو بیا یې هم حضرت حسن بصري رحمه الله ته څه ونه شول ویلای.

نو په هر قول او عمل کې هغه وخت اثر پیدا کېږي چې: د انسان معامله له خدای پاک ﷻ سره صافه وي او هرڅه یې دهغه د رضا له پاره وي. اودخدای ﷻ د رضا لوی اثر او نښه داده چې خدای پاک ﷻ ورته د ذکر او عبادت توفیق ورکړي.

یو بزرګ لیکي چې: کله ما خدای ﷻ یادوي نو زه ورباندې پوهېږم، په مجلس کې ناستو کسانو تعجب وکړ چې دا څه خبره کوې ؟ ده وویل چې: زه کله د خدای ﷻ په ذکر لګیا شم نو زما یقین شي چې الله تعالی ﷻ هم ما یادوي، څکه چې دی ﷻ په خپله فرمایي ﴿ فَاذْكُرُونِيٓ أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُواْ لِي ﴾ تاسې ما یادوئ زه به تاسې یادوم، نوپه ذکر کې اصل مقصود حضور مع الله، اخلاص او محبت ده. کله چې په هر کار کې اخلاص پیدا شي نو له ریا څخه خلاص شو اوله خدای تعالی ﷻ او جُناب رسول الله ﷺ سره یې مینه پیدا شوه. دغه انسان بیا په دنیا او آخرت کې کامیاب ده، بیا دخدای پاک ﷻ په وعدو کې دمخالفت شائبه هم نشته. نو مطلب داچې د خدای ﷻ ذکر تر کوم ځای او کوم وخت پورې منحصر نه دی. څکه چې په خپله خداوند متعال ﷻ فرمایي: ﴿ فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَوٰةَ فَاذْكُرُواْ اللَّهَ قیاما وقعوداً و علی جنوبکم ﴾ کله چې مو

لمونځ ادا کړ ،لمونځ یو عبادت ده، نو چې لمونځ مو ادا کړ له هغې نه وروسته بیا خدای پاک ﷻ یادوئ په ولاړه، په ناسته، په ملاسته په هر حال کې یې یادوئ ! ځکه چې الله تعالی ﷻ امر کوي چې: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ﴾ ای مسلمانانو تاسې الله تعالی ډېر یادوئ. له دې ځخه مطلب داده چې دائمي حضور پیدا شي اوپه چا کې چې دائمي حضور پیدا شي نو هغه ته حقیقي حیات په برخه کېږي، بیا که دی ویده وي هم خو لطائف یې ټول په ذکر لګیا وي، حتی که مړ شي هم په ذکر به لګیا وي، ځکه د انبیاوو علیهم السلام او اولیاء کرامو واقعات او حالات چې سړی مطالعه کوي لکه : حضرت نبي کریم ﷺ ولیدل چې حضرت موسی ﷺ په قبر کې په لمانځه لګیا دی، دا ځکه چې هغوی ته حقیقي حیات په برخه شوی، په دغسې اشخاصو باندې بیا مرګ نه راځي بلکې یواځې له یوه دار ځخه بل دار د انتقال مرحله وي.

نو حضرت عباس ﷺ لکه چې مخکې هم تېر شو چې فرمايي: د جنګ په سخت حالت کې هم الله تعالی ﷻ د ذکر کولو امر کوي، ځکه چې د خدای ﷻ په ذکر کولو سره زړونو ته اطمینان پیدا کېږي، بیا تکلیفونه پرې اسانه شي، هغه پخوانی سختي نه محسوسوي، ځکه چې ﴿ أَلَا بِذِكْرِ ٱللَّهِ تَطْمَئِنُّ ٱلْقُلُوبُ ﴾. الله تعالی ﷻ وايي چې په سخت حالت کې ته ما یادوه زه به په تاباندې سختی آساني کړم او هغه مصیبتونه او کړاوونه به درباندې آسانه کړم.

خو په دې لاره کې بنیادي شرط داده چې دغه یادول او ذکر کول به په مینه او اخلاص سره وي، یواځې د خولې په ویلو اونه هم داسې د زړه په ویلو چې په زړه سره ذکر کوي خو فکر او سوچ یې بل ځای وي، باید سړی دا کوشش وکړي ترڅو خپل زړه ته پوره متوجه شي، چې له دې سره بیا په زړه کې خوند پیدا کېږي، داچې زمونږ په ذکرونو کې ظاهري کوم اثر نه لیدل کېږي وجه یې داده چې یو خو سمه توجه نه کوو، مجلسونه مو بې باکه او لهو و لعب مو ډېر وي، په خوراکونو کې مو هم زیاتی او کمی وي، که داسې نه وي نو دخدای پاکﷻ په نوم کې دومره اثر ده چې یو وار څوک په اخلاص سره ( الله ) وایي نو له ځمکې څخه به یې عرش ته ورسوي نو بنیادي شرط اخلاص او دوام علی الذکر ده.

## د نېکو خلکو سره کېناستل توجه ده

زمونږ د اکثرو ملګرو دا فکر وي چې بس خانقاه ته راغلو او همدلته مو ذکر وکړ نو خبره خلاصه شوه، یاداچې تنده په تنده کېښنودل شوه نو کار جوړ شو او که توجه ونه شوه نو کار نه کېږي.

ګورئ وروڼو ! مونږ خدای پاکﷻ په ذکر باندې مامور کړی یو، هغه هم علی الدوام، دا مجلس په حقیقت کې ټوله توجه توجه ده، باید خپل دین ته په هروخت کې متوجه اوسو، خدای پاکﷻ رانه امر کړی چې: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَكُونُوا۟ مَعَ ٱلصَّـٰدِقِينَ

﴿ له نېکانو سره ملګرتيا کوئ . نو مونږ مجبوره يو چې خامخا به له عالم ، طالب او بل کوم نېک شخص سره کېنو، ځکه چې امر راته شوی، نو کله چې مونږ د خپل خالق ﷻ په امر باندې عمل وکړو نو بيا به په اعمالو کې هغه ﷻ په خپله اثر پيدا کوي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا و مولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين



# ۱۷ مجلس

## د نفس مراتب او د اخلاص او صدق فائدې

﴿ إِنَّ ٱلْمُلُوكَ إِذَا دَخَلُوا قَرْيَةً أَفْسَدُوهَا وَجَعَلُوٓا أَعِزَّةَ أَهْلِهَآ أَذِلَّةً ۖ وَكَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴿٣٤﴾ ﴾

ددې آیت شان نزول د بلقیس او حضرت سلیمان علیه السلام واقعه ده.

ظاهري معنا یې داده چې: بادشاهان چې کوم وطن ته داخل شي د جګړې او زور په واسطه هغه وطن او ښارونه تباه کوي، د هغه ځای عزتمن خلک ذلیله کړي. دقوم مشر او یاهم د کومې مرتبې څښتن وي، خو کله چې وربانډې بل حکومت راغی او غلبه یې پرې حاصله کړه نو هغه خلک بیا پابند او یاهم له وطن څخه فرار وي، او یاچېرې په پټه وخت تېروي.

باطني معنا یې داده چې: د انسان په باطن کې د نفس اماره یو حکومت ده، د نفس په اصل کې سرکشي پرته ده، نودا نفس د انسان په وجود باندې حکومت کوي، اودخپل حاکمیت د تقاضا له امله په هغه روح باندې چې هغه په اصل کې پاک شی ده اوله الله تعالی ﷻ سره یې تعلق ده، دغه نفس په هغه روح باندې غالبه شوی

وي، نوددې له امله بيا د انسان په سينه کې غلط او بې ځايه حکومت جوړ شي. حسد، کبر، قدرت پرستي، جاه طلبي، شهوت پرستي داټول د انسان په وجود کې شته. خو کله چې يې له مشائخ کرامو سره علاقه او واسطه پيدا شي، د الله تعالیٰ ﷻ مبارک اسم يې سينې ته داخل شي، نوبيا ددغه مبارک نوم په برکت بياهغه د سينې حاکم (نفسِ اماره) ذليله شي. ځکه له قرآن کريم څخه دا خبره ثابته ده، الله تعالیٰ ﷻ فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلنَّفْسَ لَأَمَّارَةٌۢ بِٱلسُّوٓءِ ﴾ همدا نفس دی چې انسان يې د بدۍ په لوري روان کړی، خو کله چې په ظاهر کې حکومت بدل شو اود نفسِ اماره په ځای روح غالب شو، له الله تعالیٰ ﷻ سره يې علاقه پيدا شوه، نوبيا په هغه ځای کې نفس محکوم او روح حاکم شي او بياچې کله له انسان څخه کومه ګناه صادره شي نوبيا دغه نفس دومره اصلاح شوی وي چې بيا انسان ددغې ګناه د کولو له امله ملامتوي چې ته خو د ګناه له پاره نه بلکې دنېک عمل د کولو له پاره پيدا شوی يې. اود نفس دغه حالت ته (نفسِ لوامة) وايي. بيايې چې څه نوره اصلاح په برخه شي نو بيا (نفسِ مطمئنه) وګرځي، مطلب داچې د الله تعالیٰ ﷻ په ذکر، د ښو کارونو په کولو يې بدن ته سکون او راحت په برخه کېږي، بيا په فقر، مسکنت، لنډه داچې په هر مصيبت او سختۍ باندې صبر کوي، شکايت نه کوي. او کله چې د نفس مجاهده نوره هم پسې قوي اوزياته شي نو بيا (نفسِ راضيه) شي، معنا داچې د الله تعالیٰ ﷻ په قضا او فيصلو باندې راضي وي. -

انسانان دوه طبقې لري، يوې ډلې ته محبوبين ويل کېږي او بلې ته يې مُحِبين. د اهل تصوف او طريقت په اصطلاح په مشربونو کې فرق ده. څوک چې محبوبين دي، دهغو له پاره ددغو مقاماتو د طې کولو له پاره حاجت نشته، دهغوی ابتداء توبه ده او انتهاء يې رضا بالقضاء ده، صبر ده، حلم ده، قناعت ده، بلکې نور مقامات هم په دې منځ کې شته، خو دا نفس داسې مقام ته ورسېږي چې که د خدای ﷻ له لوري هرڅه ورته رسيږي دی ورياندې راضي وي.

اکثره مشائخ کرام چې د زحمت په وخت کې کوم راحت محسوسوي ددغه راحت خوند بيا په عامو حالتونو کې نه وي. او کله چې نفس له الله تعالی ﷻ څخه راضي شو نو بيا دغه (نفسِ مرضيه) ګرځي. خدای پاک ﷻ له ده څخه راضي وي. ځکه محبت د دواړو طرفونو څخه وي. او رضا هم له دواړو طرفونو څخه وي. څوک چې له الله تعالی ﷻ سره مينه او محبت لري الله تعالی ﷻ، رسول الله ﷺ يې هم ورسره لري، څوک چې له اولياء کرامو سره مينه اومحبت لري هغوی يې هم ورسره لري. دا يو نسبت ده چې له دواړو طرفونو څخه موجود وي.

څوک چې له الله تعالی ﷻ څخه راضي وي هغه ﷻ هم ورڅخه راضي وي، چې په دې سره نفس (نفسِ مرضيه) ګرځي، خودا هلته کېږي چې په هره خبره کې صادق وي، هر قدم چې دی اخلي هر کار چې کوي د زړه له صدقه يې کوي، نوبيابه دغه مقامات ترلاسه کوي.

محترم داد محمد خليفه صاحب بيانوي چې: په مخکې وخت کې خلک به د صحابهٔ کرامو، اولياء کرامو د عمل او ګفتار له امله ځينې خلک مسلمانان کېدل...

ډېر خلک به د صحابهٔ کرامو، اولياء کرامو د عمل او ګفتار له وجې نه له ګمراهي څخه راګرځېدل اوپه هدايت باندې به لګيا کېدل، نفسِ چې ددوی عمل او کردار ته به يې وکتل نو له خپل عمل څخه به زرترزره تائب شول، کفار به مسلمان شول اوددوی اقوالو او افعالو ته به يې چې وکتل فاسق مسلمانان به هم تائب شول خو افسوس په موجوده عصر چې داسې حال مو ده چې د عمل له وجې نه مو عوام خلک له دين څخه منحرف شي، ډېر وخت چې کفار د مسلمانانو قتل، ظلم او نورو ناروا وو ته وګوري نو دوی ته اشتباه پيدا شي چې دا دين حق ده که نه ، په حق دين کې به ولې دوی داسې ناروا عمل کوي؟ دهغو خلکو په قول او عمل باندې کفار مسلمان کېدل خو دلته زمونږ د عمل له امله بيا خلک بې لارې کېږي.

## دحضرت علي ﷺ او قاضي شُريح واقعه

دامير المؤمنين حضرت علي ﷺ په دورهٔ خلافت کې چې دی د تولې دنيا د مسلمانانو خليفه وو ، دده د بدن زغره ورکه شوه، څه وخت پس يې دغه خپله زغره د يوه يهودي په لاس کې وليده ، ويې پېژندله نو په دغه يهودي يې دعوه وکړه چې دا زغره زما ده، هغه ورڅخه انکار وکړ، د حضرت علي ﷺ په دورهٔ خلافت کې قاضي حضرت شريح رحمه الله و، نو حضرت علي ﷺ او يهودي دواړه د قاضي حضور ته ورغلل او حضرت علي ﷺ ورته عريضه وړاندې

کړه چې زما دغه زغره یهودي راځخه وړې ده، یهودي منکر شو، حضرت شُریح حضرت علي‌ ته مخ راوګرځاوه چې ته په دې خبره شاهدان لرې چې دا زغره ستا ده ؟ حضرت علي‌ خپل زوی حضرت حُسین‌ او خپل غلام حضرت قمبر‌ د شاهدي له پاره راوستل، د حضرت علي‌ رایه داوه چې دخپل قریب شاهدي د سړي له پاره صحیح ده، که د ګټې په ځای کې وي اوکه د تاوان، اما د عامو صحابهٔ کرامو‌ لکه چې د احنافو هم همداسې مسلک دی چې د ګټې په ځای کې د قریب شاهدي د قریب له پاره صحیح نه ده اوکه په ضرر دده وي لکه: د یو چا په پلار بل چا دعوه وکړه، دغه سړي په خپل پلار شاهدي ورکړه چې ربښتیا په تا باندې یې حق شته ، دغه شاهدي یې منظوره ده، خو که ددغه شخص پلار په بل چا دعوه وکړي او دی یې شاهدي ورکړې نو دغه شاهدي یې نه منظوریږي.

په هر حال ! حضرت شُریح رحمه الله حضرت علي‌ ته وایي چې: ای امیرالمؤمنین ! حضرت حُسین ستا زوی ده او ستا په ګټه یې شاهدي ورکړه، اود عامو صحابهٔ کرامو‌ او زما رایه داده چې: د ګټې شاهدي نه منظوریږي، بل څوک شاهد راوړاندې کړه ! حضرت علي‌ ورته وویل چې بل څوک شاهد نه لرم، ده ورته وویل : نو بیا خو زغره د یهودي ده، کله چې دوی ببرته د قاضي له مجلس څخه ووتل نو دغه یهودي د حضرت علي‌ په شا پسې روان و، اوپه زوره یې نارې وهلې چې وګورئ ! امیرالمؤمنین چې د ټولې دنیا د مسلمانانو مشر او خلیفه دی ، دی له ماسره چې زه یو

عام سړی یم خپل قاضي ته ورغی او هغه قاضي د شریعت فیصله زما له پاره وکړه، امیرالمؤمنین غاړه ورته کېښوده، له ځان سره یې داوویل چې: که دا دین حق نه وای نو داسې چېرې هم ممکنه نه ده چې دیویهودي سړي په مخکې د دُنیا د ټولو مسلمانانو مشر قناعت کوي، نو معلومېږي چې دا دین حق دین دی، که باچا ده او که ګدا ده، ټول په دې دین کې برابر دي، نو په هغه ځای یهودي کلمهٔ طیبه وویله او مسلمان شو.

دا دحضرت علي ﷺ د عمل اثر و، یهودي له اسلام قبلولو وروسته دا وویل چې دا زغره په رښتیا سره ستا ده او ورته یې تسلیم کړه، نودده د ښه عمل دوه ګټې شوې، خپل حق هم ورته ورسېده او ورسره هغه مقابل یهودي هم مسلمان شو.

**قصه:**

حضرت پیران پیر شیخ عبدالقادر جیلاني قدس سره چې د حج په شپو ورځو کې حاجیان د عرفات په غونډۍ ولاړ دي، هغه وخت دی هلک و، غوا یې روانه کړې او پیایي یې، کله چې دشتې ته ووت، دې غوا ناڅاپه مخ ورته راواړاوه او ورته یې وویل: ﴿یا عبدالقادر ! ما خُلِقْتَ لِهذاً ﴾ ای عبدالقادره ! ته الله تعالی ﷻ دغواګانو د پوولو او ساتلو له پاره نه یې پیدا کړی، ته یې د خپل معرفت او بندګی له پاره پیدا کړی یې، دی سخت په وېره کې شو، چې غوا بیا دهغې خبرې کول ؟ دی کوچنی هم و، نو بېرته راوګرځېد، خپلې مور ته راغی، پلار یې هم مړ دی، نو مور ته یې وویل: چې ماته

اجازه وکړه چې زه د خدای ﷻ دین زده کړم، معرفت حاصل کړم،
بغداد ته ولاړ شم، ترڅو د نېکانو زيارتونه وکړم او هلته علم حاصل
کړم. مور ورته وويل چې: ولې څه پښنبه ده ؟ ده مبارک ورته هغه د
غوا واقعه ذکر کړه چې غوا داسې راته وويل، له دې سره بام ته
وخوت او ويل يې چې هغه دی ټول خلک په عرفات ولاړ دي،
دخدای ﷻ عبادت کوي اوزه غوا پيايم، کله چې دده پلار مړو نو په
ميراث کې ورڅخه اتيا درهمه پاتې ونو مور يې جګه شوه (۴۰)
روپۍ يې دده بل ورور ته ورکړې او څلوېښت يې ده ته په لستوڼي
کې وګنډلې او مور مبارکه يې خدای پاماني ته ورته راووتله، ورته
يې وويل چې: زويه ! ما نور ته له خپل ځان څخه بېل کړې، تر
قيامت پورې به بيا زه او ته سره ونه وينو، ما دين ته يې وقف کړې
اود خدای ﷻ د رضا له پاره د دين علم حاصلوه، چې ترڅو دې علم
پوره نه وي حاصل کړی نو بېرته به نه راځې ! خو دا يوه خبره به مې
هر وخت په ياد ساتې چې: هروخت به رېښتونی يې او رښتيا خبره
به کوې ! په طالبي او خدمت کولو کې به صادق اوسې ! هر کار به
دې رېښتونی وي.

حضرت پيران پير صاحب کشر هلک ده، کله چې له کور څخه
روان شو، نو له يوې قافلې سره ملګری شو چې هغوی هم د بغداد
په لور روان وو، يو ځای ته ورسېدل چې په آسانو سپاره غله ورته
رامخې ته شول، ټوله قافله يې ودروله، غلو شروع وکړه او د قافلې
له خلکو سره چې څومره مالونه وو هغه يې ورڅخه واخيستل،
پيران پير صاحب وايي چې کله غله ماته راورسېدل ماته يې راپام نه

شو، بو غل راغی او ناڅاپه یې راته وویل چې: له تاسره څه شی شته ؟ ما ورته وویل : هو ! هغه راته وویل چې څومره ؟ ما ورته وویل چې: څلوېښت درهمه، هغه راته وویل چې کوم ځای دې ایښي دي ؟ ما ورته وویل چې: په دغه کمیس کې مې ګنډلي دي، دا خبره د غله زړه ته ونه لوېده چې دا ماشوم هلک هسې په ما باندې مسخرې کوي، خوار او غریب هلک ده، له ده سره دومره دنیا له کومه شوه ؟ دا غل هم راڅخه تېر شو، بل غل راغی او هغه ته مې هم دغسې خبره وکړه ، هغه هم راڅخه تېر شو، کله چې دا غله خپل هغه مشر ته ورغلل چې ټوله قافله یې چور کړې وه او اوس یې سره په خپل منځ کې سامانونه تقسیمول، نو هغه مشر له دې نورو څخه پوښتنه وکړه چې له چاسره خو به مو څه پرېښي نه وي ؟ دغو دوه کسانو ورته وویل چې: یو غریب هلک مونږ ته وویل چې: له ماسره څلوېښت درهم شته. مشر ورته وویل چې: راویې غواړئ ! کله چې دی ورغی نو د غلو مشر ورڅخه پوښتنه وکړه چې: له تاسره څه شی شته ؟ ده ورته وویل : بلې ! هغه ورته وویل چېرې دي ؟ ده ورته وویل چې: په لستوني کې مې ګنډلي دي. کله چې یې دده لستوني ورشکاوه نو روپۍ یې ورڅخه را ووېستې، نو د غلو دغه مشر پیران پیر صاحب ته وایي چې: څه وجه او باعث و چې دغه پټې روپۍ دې مونږ ته راښکاره کړې ! ستا دغه لستوني ته خو زمونږ پام نه و، دی ورته وایي چې: زما مور له ماڅخه وعده اخیستې وه چې : په هره خبره کې به رښتیا وایم ، زه به په خپله خبره کې رېښتونی یم ، زه له خپلې مور سره کړې وعده نه ماتوم. د پیران پیر صاحب د صداقت

دا اثر وو چې د غلو د مشر په زړه خدای ﷻ دا اثر کېښود، په ژړا یې شروع وکړه چې مونږ خو د الله تعالی ﷻ سره وعده کړې، خو بیا هم په دې وعده کې ریښتوني نه یو، څو کاله پرله پسې دا وعده مونږ ماته کړې ده، مسلمانان خوروو، وژنو یې او مالونه یې چور کوو، او په ایمان کې خو وعده داده چې مسلمان به مسلمان ته ضرر نه رسوي. نو دحضرت شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله په واسطه د غلو مشر له خپل دغه بد عمل څخه توبه ووېسته، کله چې ده توبه ووېسته نو عامو غلو ورته وویل چې: ته په غلا کې زمونږ مشر وې ! نو نن په توبه کې هم زمونږ مشر یې ! که تا له خپلې ګناه څخه توبه ووېسته نو مونږ ټول هم توبه وباسو. ټولو توبه ووېسته، د ټولې قافلې خلکو ته یې خپل خپل مالونه وسپارل.

نو پیران پیر صاحب په خپله خبره کې ریښتونی و، دده د ریښتینولۍ دومره اثر و چې خدای پاک ﷻ هغه د غلو ډله دده د یوه عمل په واسطه توبې ته برابره کړه، له خپل بد عمل څخه یې راوګرځول.

نو مخکني اسلاف مبارکان که هغه صحابهٔ کرام ﷺ دي او که اولیاء کرام دي، که مشائخ دي او که علماء کرام وو، دوی ټول داسې وو چې د دین نمونې وې ، هغوی ته به چې چا وکتل نو ددوی د عمل او قول څخه به متاثر کېدل، بیا به خود به خود ورواوښتل، خپلو ګناهونو ته به متوجه شول، چې زه څرنګه بې خایه اوبه ګناه کې لګیا یم.

ن چې له مونږ څخه خلک ورځ په ورځ نفرت کوي، له طالب، ملا، حاجي او مجاهد څخه نفرت کوي نو دهغې وجه داده چې زمونږ په خپلو ويناوو او اعمالوکې توافق نشته، په دواړو کې مو د اصلاح کوشش نه دی کړی، صداقت نشته ، که داسې نه وي نو که مونږ له الله تعالیٰ ﷻ سره په وعده کې رېښتوني شو، په خپلو اعمالو کې رېښتوني شو، مخلصين او صادقين شو، بيا به خدای پاک ﷻ خامخا دا اثر پيدا کوي چې هغه بدبخته خلک به هم تابع کړي. ډېر وخت بدماشان وي، خو خليفه صاحبانو ته ورشي چې صاحبه ! که ماته څه خدمت وي ، د نورو خلکو د څورولو له پاره کوشش کوي ، خلک وژني او پيسې، مال او دولت ورڅخه اخلي، خو په خانقاه او دربار کې ځان بيا غلام وړاندې کړي، چې که ماته څه خدمت وي. ددې وجه داده چې دا خلک خدای پاک ﷻ ته تابع او منقاد دي، نو ځکه نور مخلوق دوی ته تابع دي.

نور خو وخت دغسې ده، کوم اخلاص او صداقت چې مخکې و، هغه خو اوس بالکل محال ده چې موجود شي، خو بيا هم که له خپل وس سره سم د الله تعالیٰ ﷻ سره په خپل قول او عمل کې مخلص شو بيا به طالب ، مُلا، حاجي، شيخ ، صوفي او مجاهد ته هم هرسړی لاس په نام ولاړ وي، ددې مطلب دا نه دی چې مونږ دا فکر وکړو چې ماته دې څوک لاس په نامه ولاړ وي، بلکې معنا يې داده چې خدای پاک ﷻ به دهغوی په زړه اثر غورځوي ، کشر به يې هم ادب کوي او مشر هم، څوک چې خدای پاک ﷻ ته تابع شي، بيا نو خدای پاک ﷻ ورته خپل مخلوق او ملائکې تابع کوي. په حديثو

کې ثابته ده چې : د طالب د پښو لاندې ملائکې وزرې غوړوي، هغه پاک مخلوق، انسانان، حشرات اونور حیوانات یې ټول تابع شي، لکه چې د ډېرو اولیاء کرامو په حالاتو کې داسې راغلي دي.

## څوک چې دخدای پاک ﷻ تابع شي مخلوق به دده تابع شي

د یوه ولي مبارک په واقعه کې مې لیدلي چې: د ګرمي وخت و، دی ویده و او مار پاڼه په خوله کې ورته نیولې او پکی وربانده وهي، سره له دې چې مار د انسان دښمن ده، هغه ورته تابع او پکی وربانده وهي. څوک چې خدای پاک ﷻ اودهغه له دین سره مخلص شي، نو بیا الله تعالی ﷻ ورته هرڅه مُسخر کړي، دده په خزانو کې د هیڅ شی کمی نشته، نو بیا وګورئ! چې زمونږ ستاسې په قول او عمل کې څومره اثر پیدا کوي، خو خبره په مونږ کې ده، چې که مونږ مخلص شو ، دخدای ﷻ رضا مو مطلب شي، که یوه خبره په صداقت وي، نو په دې یوه خبره کې به دومره اثر وي چې د جنت بنګلې به په لاس ورځي.

حضرت نبي کریم ﷺ چې کله د بدر په میدان کې و، د جهاد مشوره یې عملي کوله، هلته ډېر تکلیف و، ځینو خلکو څه کمزوري وښودله، د انصارو کرامو څه خلک ورته رامخ ته شول، او ویې ویل چې: مونږ د بني اسرائیلو په شان نه یو، چې هغوی خپل پیغمبر حضرت موسی علیه السلام ته وویل :﴿ فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا

عَنْهَا قٰعِدُوْنَ ﴾ چې ته او خپل رب دې سره ولاړ شئ او له کفارو سره وجنګېږئ مونږ به دلته درته ناست یو. ) نه ! مونږ داسې نه یو، بلکې مونږ به له تانه مخکې، شاته، ښي طرف او چپ طرف ته به هم جنګېږو، په دې یوه خبره رسول الله ﷺ دومره خوشاله شو چې حضرت عمر فاروق ؓ وایي چې: زما د ټول وخت عمل دې نه وای خو دا یوه خبره چې ما کړې وای.

نو په یوه خبره د خدای ﷻ رضا پیدا کېږي، په یوه خبره د رسول الله ﷺ رضا پیدا کېږي، په یوه خبره د الله تعالی ﷻ دیدار پیدا کېږي. دا یوه کلمهٔ طیبه چې څوک په اخلاص ووایي او اویا، اتیا کاله یې په کُفر کې تېر کړي وي، نو په دغه یوه کلمه الله تعالی ﷻ دغه ټول کفر ورته ببښي، ددغې یوې کلمې په ویلو سره یې خپل دوست کړي، په یوه کلمه سره خپل دیدار ورکړي. که یو کافر بیاخې کلمه ووایي او له دې سره متصل وفات شي، نور لمونځ اودس، زکات، روژه، حج او نور اعمال صالحه یې نه وي کړي، نو بیابه هم الله تعالی ﷻ جنت ورته ورکوي، خپل دیدار او هغه نعمتونه به ورکوي کوم چې نورو جنتیانو ته یې ورکوي، خو شرط یې دادی چې دغه کلمه یې په رښتیا سره ویلې وي، که رښتوني نه وي په زرګونو تسبیحات چې ووایي، په زرګونو رکعته نفلونه وکړي، صدقات او خیراتونه وکړي له دې ټولو سره سره انسان ته دیوې ذرې په اندازه هم خیر نه شي رسولای، ځکه چې هلته نیت خراب ده، اخلاص نشته.؛

ضروري او مُهمه خبره داده چې ملګري يو بل ته متوجه وي ، که
وم وخت د شريعت مخالفت پکې ليدل کېږي بايد چې ورته يې
وايي، ملګرى هم بايد دغه نصيحت په ځان بوج ونه ګڼي، که
ونړ د شريعت په چوکاټ کې يو بل ته عيبونه په ګوته کړو نو په
ڼپله اصلاح منځ ته راځي، اوکه چېرې خپل عيب راته نه
علومېږي او دبل خبره هم راباندې بده لګېږي، غوږ ورته نه
يسو، په ځان يې بوج ګڼو نو بيا خو اصلاح کېدل محال دي، کله
چې مونږ له خداى ﷻ سره مخلص شو نو بيابه نصيحت هم راباندې
اثر کوي، که مونږ يو بل چاته څه خبره کوو په هغې کې به هم اثر وي
او الله تعالى ﷻ به ښه اثر ورباندې مرتب کړي.

وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا وسندنا وشفيعنا و
مولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين



## ۱۸ مجلس

## د اخلاص او توبې په بیان کې

د تقوی اثر په اوو ځایونو کې معلومیږي، یو له هغو څخه دا ده چې طاعت د خدای تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره وشي ، که یو څوک طاعت او عبادت د خدای تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره نه کوي نو دا عمل یې هم په دنیا او هم په آخرت کې عبث او بې فائدې دی.

### د مالک بن دینار د بزرګۍ سبب کیدلو قصه

حضرت مالک بن دینار رحمه الله چې د خپل وخت یو ډېر لوی بزرګ او ولی الله و، دی بې اندازې دنیاداره سړی و او له مال دولت سره سره الله تعالیٰ ﷻ ورته ښائست هم ورکړی و، ډېره ښه ځواني یې وه.

دی وایي چې: زه د شام د دمشق ښار جامع جومات ته چې حضرت معاویه رضی الله عنه جوړ کړی و ولاړم، په زړه کې مې راوګرځېدل

چې کاشکې ددې جومات سرپرستي يې ماته راکړې واى، زه يې متولي او سرپرست واى، له دې نه وروسته مې په همدغه جومات کې اعتکاف شروع کړ، تر څو د خلکو په ما باندې اعتماد پيدا شي، مال دولت راسره ښه ډېر و نو خيراتونه مې هم شروع کړل، له مسکينانو سره مې مرستې او کومکونه وکړل، نفلونه مې شروع کړل، هرڅوک به چې راتلل نو زه به يې ليدلم چې په نفلونو ولاړ يم، يو کال مې همداسې په اعتکاف او عبادت کې تېر کړ، مالک بن دينار رحمه الله وايي چې: په دې دومره وخت کې به ماته ځان د منافق په شان ښکارېده، ځکه چې زما په دې عبادتونو او خيراتونو سره نيت داو چې ترڅو خلک رابانديې اعتماد وکړي او ماته د جومات سرپرستي راکړي، خو ددې يو کال تکليفونو سره سره خلکو زما لور ته هېڅ التفات ونه کړ.

دى وايي چې: آخر يوه شپه مې له ځان سره فکر وکړ چې دا يو کال کېږي چې په اعتکاف کې ناست يې او شپه ورځ په نفلونو لګيا يې ، په صدقو او خيراتونو مصروف يې، دا ټول ددې له پاره چې د خلکو تر نظره ښه ورشم، چې فلانکى ښه سړى دى، نو آيا دا کار ډېره لويه بې عقلي نه ده ؟ چې خپل قيمتي وخت دې ددې له پاره ضايع کړ چې خلک مې ښه وګڼي.

دى وايي: له ځان سره مې فيصله وکړه چې: له دې وروسته به عبادت يواځې او يواځې خدايه تاته کوم ! دى وايي دغه شپه چې ما په عبادت کې يواځې د خداى تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره تېره کړه نو سهار تقريباً ددغه جومات چې څومره مشران او کليوال وو هغوى

په خپل منځ کې کېناستل او سره يې وويل چې: په دې جومات کې ځه کړکۍ، دروازې، يا کوم سيمنټي ځای خراب شوي دي، بايد ددې کارونو له پاره په خپل منځ کې سره څه چنده يوځای کړو او يو نېک سړی مو ورته ټاکلی وای چې د جومات دغه کار يې په غاړه اخيستې وای. نو دې خلکو په خپل منځ کې سره وويل چې: تر مالک بن دينار بل ښه سړی نشته، له فيصلې وروسته ماته شل کسان راغلل او کېناستل چې مونږ له دې غوښتنې سره درته راغلي يو چې که ته ددغه جومات سرپرستي په غاړه واخلې، مصرف اونور هرڅه يې ستا په اختيار کې وي.

دی وايي چې ماوويل: ای خدايه ! يو کال مې د ځان له پاره عبادت کاوه چې خلک مې ښه وګڼي خو هيچا راته التفات ونه کړ، نن چې يوه شپه خاص ستا په دربار کې ستا له پاره ودرېدم ، نو اوس زه د جومات سرپرستي نه غواړم، دغه دی شل کسان راته راغلي او ناست دي چې ته د جومات سرپرستي واخله.

نو مالک بن دينار رحمه الله قسم کوي چې: زه به ددې جومات سرپرستي هېڅکله هم وانه خلم او زه به آينده ټول کارونه د الله تعالیﷻ د رضا له پاره کوم.

دغه حضرت مالک بن دينار رحمه الله بيا د الله تعالیﷻ له مقربينو څخه حساب شو، له دې ټولې مالدارې سره يې ملنګي او خدای پرستي خوښه کړه ، دنيا ، مال او دولت هرڅه يې ختم کړل، له مشائخو سره يې تعلق پيدا کړ.

## دمالک بن دینار(رحمه الله ) د نوم وجه او سبب

نو مالک بن دینار (رحمه الله) یوه ورځ په کشتۍ کې سپور شو، نو د دریاب په منځ کې کشتیبان ورڅخه یو دینار کرایه وغوښته او له ده سره یو دینار هم نه و، دی وایي چې په دې خبره یې نه پرېښودم او په کشتۍ کې راسره د کشتیبان جنګ شو، دومره یې ووهلم چې بې هوښه شوم، چې بیا را په واک شوم، بیا یې راته وویل چې یو دینار راکړه، ما بیا ورته وویل چې راسره نشته، بیا یې ووهلم، په دریم وار مې ورته وویل چې نور مې وس نشته، له لاسونو او پښو څخه مې ونیسئ او دریاب ته مې وغورځوئ ! کله چې دوی ددې کار اراده وکړه نو له دریاب څخه ډېر ماهیان د کشتۍ په یوه او بل طرف باندې راپورته شول او هر ماهي په خوله کې یو یو دینار نیولی و، له یوه ماهي څخه مې دینار راواخیست او د کشتۍ مالک ته مې ورکړ، نو ځکه ده ته (مالک بن دینار) وایي. له دې نه وروسته له کشتۍ څخه راکوز شو او د اوبو په مخ باندې روان شو او بیا چا ونه لیده.

نو لنډه دا چې هرکله کار د خدایﷻ د رضا له پاره نه وي، نو یو کال اعتکاف، لمونځونه، خیراتونه هېڅ ګټه نه رسوي او نه هم د خلکو په زړونو کې ځای پیدا کولای شي، خو کله چې یوه شېبه خدای تعالیﷻ ته په اخلاص ودرېږي بیا یې ثمره او نتیجه تاسې هم ولیدله چې خلکو ته محبوب شو، دا ولې ؟ ځکه چې خدای

تعالی ﷻ ته محبوب شو، کله چې یې له خدای تعالیٰ ﷻ سره د
إخلاص معامله شروع شوه، نو بیا الله تعالیٰ ﷻ هغه مقام او مرتبه
ورته ورکړه چې که سړی دده مبارک تاریخ ګوري ښخي یې نه شي
بیانولای. دومره تکلیفونه یې تېر کړي دي چې د عُمر په آخرکې یې
بیاپه کلونوکلونو لمده ډوډۍ نه ده خوړلې، خورما او غوښه یې نه
ده خوړلې، په ډېروتکلیفونوکې به یې شپې ورځې تېرولې.

## دعمر په اخیرکې دیوبدمعاش دعاجزي اودتوبې یوه قصه

په بني اسرائیلو کې یوه سړي په بدمعاشي شروع وکړه، خلک
ورځخه ډېر په تنګ شول، آخر خلکو الله تعالیٰ ﷻ ته زارۍ وکړې
چې خدایه له دې مصیبت څخه مو خلاص کړې. الله تعالیٰ ﷻ
حضرت موسیٰ عليه السلام ته وحیې وکړه چې: په فلانکي ښار کې فلانکی
سړی بدمعاش ده ، هغه له دغه ښارڅخه وباسه، حضرت موسیٰ عليه السلام
ورغی او بدمعاش یې له هغه ښارڅخه وشاړه، له هغه ځای نه چې
ولاړ نو په بل لیرې کلي کې یې بدمعاشي شروع کړه، بیا
موسیٰ عليه السلام ته حکم وشو چې له دې کلي څخه یې هم پسې واخله. له
دې کلي نه یې هم پسې واخیست، له دې وروسته دغه بدمعاش
داسې یوې دښتې ته ولاړ چې هلته نه فصلونه او نه هم آبادي، نه
حیوانات اونه هم انسانان وو، خوشې بیدیا وه.

نو تاسې ګورئ د وخت پیغمبر او نورو خلکو پسې واخیست، د
څه وخت له تېرېدو وروسته دغه بدمعاش په دې صحرا کې مریض

شو، تردې پورې چې د ناستې پاستې او حرکت څخه ولوېده، نود نزعې او زنکدن حالت ته نږدې ده، له لاسونو او پښو څخه يې دمه ختلې ده، هېڅ يې له وسه نه دي پوره، نو په دې ځای کې الله تعالیﷻ ته په ژړا شو چې: خدايه! له ښار څخه دې پسې واخيستم کلي ته راغلم، له کلي څخه دې بيا پسې واخيستم اوله هغې وروسته مې دغه بيابان ځای شو، نن دې په بيابان کې له خپلو اقاربو او خپلوانو څخه بېل کړم، نو له خپل رحمت څخه خو مې مه جدا کوه، مه مې نااميده کوه! اوبه ژړا شو، چې که نن مې مور وای نو زما سر ته به ناسته وه، په ما به يې ژړا کړې وه، که نن مې پلار وای نو زما علاج به يې کړی وای، که په دې ځای کې مې زامن راسره وای نو زما جنازه به يې کړې وای او خدای پاکﷻ ته به يې دا سوال کړی وای چې ته زمونږ پلار وبښې! که نن له ماسره په دې ځای کې زما ښځه وای نو زما په جداوالي به يې ژړلي و. خو خدايه! بې موره، بې پلاره، بې زامنو او بې ښځې شوم، له ټولو نه جدا شوم. نو ای خدايه! له خپل رحمت نه خو مې مه بېلوه!

کله چې دغه بدمعاش په اخلاص ژړا شروع کړه، خدای پاکﷻ ته يې په اخلاص رجوع وکړه نو الله تعالیﷻ هم د جنت حورو ته حکم وکړ. نو يوه حوره ورته دده د مور په شکل کې راغله او له ده سره کېناسته، بله حوره دده د ښځې په شکل کې راغله اوهغه هم ورسره کېناسته، د جنت څخه غِلمان هم راغلل او له ده سره دده د اولاد په شکل کې کېناستل. يوه ملائکه دده د پلار په شکل کې راغله او له

د سره کېناسته، ټول يې وليدل ، نو کله چې يې خپل ټول خپل
پهلوان وليدل نو خوشاله شو او له دې سره يې روح هم قبض شو.

واجب تعالیٰ ﷻ حضرت موسیٰ ؑ ته حکم وکړ چې: ورشه ! په
فلانکی دښته کې زما يو دوست وفات شوی، دهغه جنازه او
تدفين سرته ورسوه، مړ دی او څوک نه لري. کله چې موسیٰ ؑ
ورغی نو څه ګوري چې په دښته کې همغه سړی ده چې موسیٰ ؑ د
خدای پاک ﷻ په حکم سره له ښار نه کلي او له کلي نه صحرا ته
شړلی و، نو موسیٰ ؑ الله تعالیٰ ﷻ ته عرض کوي چې: ته حکيم
ذات يې او زه خو نه پوهېږم. دا خو هغه څوک ده چې ما ستا په حکم
له ښار نه کلي ته او له کلي نه صحرا ته شړلی و او اوس وايې چې دا
زما دوست ده ؟ نو د الله تعالیٰ ﷻ له طرف نه موسیٰ ؑ ته وويل
شول چې: دغه بنده په ډېر اخلاص راته وژړل او توبه يې ووېسته ، د
مسافرۍ او غُربت په حالت کې و.

نو الله تعالیٰ ﷻ بيا له مور او پلار نه اويا وارې رحيم ذات دی. يو
وار چې په اخلاص دغه بدمعاش وژړل، سره له دې چې دومره
منفور وچې د وخت پيغمبر ته وحيې کېده چې دا له ښار او کلي نه
وباسه، له خپلو خپلوانو نه يې جدا کړ، خو بيا د همدغه بدمعاش
سړي په حق کې الله تعالیٰ ﷻ حضرت موسیٰ ؑ ته امر کوي چې دا
زما دوست شو ، عاجزي يې راته وکړه نو ما يې هم عاجزي قبوله
کړه. اود واجب تعالیٰ ﷻ دا عادت دی چې چېرې هم څوک د سفر په
حالت کې مړ کېږي او ډېر مايوسه شي ، خصوصاً د زنکدن په
حالت کې، نو چې يو وار واقعاً مسلمان وي او خدای پاک ﷻ ته

عاجزي شروع کړي نو دغه شخص ته دغسې غیبي ملائکې د مور ، پلار، ورونو او اقاربو په شکل کې راځي او ورسره کیني.

ټول ژوند سړی په کفر کې تېر کړي وي خو چې یو وار په اخلاص توبه ګار شي نو الله تعالیٰ ﷻ ورته له ټول کفر څخه تېرېږي، ټول عمر یې په فِسق او ګناه کې تېر کړی وي خو چې یو وار په اخلاص توبه وباسي نو بیا هم له ټولو بدعملیو ورتیرېږي، که طاعت، لمونځ، روژه، جهاد، علم بلکې هر نېک عمل چې د خدای تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره نه وي هغه په هېڅ شمار ده.

## دوزخ ته به اول شهید، عالم او سخي ننوځي

په حدیث مبارک کې راځي چې له ټولو نه مخکې به درې ډلې دوزخ ته ځي چې هغه شهید ، عالم او سخي دی. څکه چې شهید شوی وي خو جهادیې د الله تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره نه وي کړی، همداسې عالم د خدای تعالیٰ ﷻ د خوشالولو له پاره علم نه وي حاصل کړی، او سخي هم د خدای ﷻ د رضا له پاره مال نه وي ورکړی، نو په دنیا کې خو ځان ډېر ښه ورته معلومېږي ، په ډېر ښه عمل لګیا ده، خو چې دخدای پاک ﷻ د رضا نه وو بیا به په دغو خلکو د جهنم اور بلیږي. نو په هر عمل کې به زمونږ مطلوب او مقصود د الله تعالیٰ ﷻ رضا وي.

لږ عمل دې وي خو چې د الله تعالیٰ ﷻ له پاره وي، دغه لږ عمل تر
دغه ډېر عمل چې په رياکاري او نوم باندې بناء وي او ياهم د بل
غرض له پاره وي نو دغه لږ عمل ورباندې بهتره ده. که يوه يا نيمه
کهورما (کهجوره) چې څوک په اخلاص سره صدقه کړي د اُحُد د
غره په اندازه د سرو زرو د رياکاره خيرات ورکولو نه زيات ثواب
لري، دوه رکعته نفل که په اخلاص سره وي، يا هم يو ساعت
مطالعه وکړي، دا تر مليونونو روپيو نه بهتره ده او که سړی د ذکر
په حالت کې په ژړا لګيا وي، خو خپلې ژړا ته دې وګوري چې زه د
څه له پاره ژاړم، چې خلک راته ووايي چې دا فلانکی دومره ولې
ژاړي، نو که دغه ژړا دې د خدای تعالیٰ ﷻ د خوشالولو له پاره نه
وي نو په دې کې هم هيڅ ګټه نه شته. نو غرض دا چې په هرڅه کې
مقصود د الله تعالیٰ رضا ده.

واخردعوانا ان الحمد لله رب العالمين

وصلى الله تعالى على خير خلقه سيدنا و سندنا و شفيعنا و
مولانا محمد وعلى آله واصحابه واتباعه واهل بيته اجمعين



# (۱۹) مجلس

## دجنت انعامات او مقامات

قال الله تعالی: ﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ ﴿۴۶﴾ ﴾

په عبادت کې دکوشش کولو یوه طریقه داده چې سړی دعباداتو ثوابوته متوجې شي چې خدای پاک په دغو عباداتو باندې مونږ ته کومه بدله اوعوض راکوي چې دهغو نعمتو دخدای پاک په دغوعباداتوباندې مونږ ته کومه بدله او عوض راکوي چې دهغو نعمتو دخدای پاک سوچ اوفکر ډېروي ورسره نوبیا دغه انسان دهغه نعمت دحاصلولوپه خاطر باندې کوشش کوي.

خداوند متعال په دغو عباداتو باندې انسانانوته جنت ورکوي جنت څنګه مقام ده؟

حضرت نبي کریم ﷺ دجنت تشریح کوي اووایي: وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ ﴿۴۶﴾ ﴾.

څوک چې داریږي له دېنه چې زه به په ورځ دقیا مت دخدای پاک په حضور کې درېږم اوزما سوال اوجواب به کیږي. نوهغه ته خداوند

متعال دوه جنته ورکوي بل ځای کې راځي: ﴿ وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ ﴾. ددغو دووجنتونه بغير دوه نور هم شته -

نوحضرت نبي کريمﷺ دجنتو تشريح شروع کړه نوويې ويل چې دوه جنتونه داسې دي:چې دهغو ځمکې پرش اودکوټو دېوالونه داټول دسپينوزرو دخښتو دي اوخاوره يې مشک اوعنبر دی شګې يې ملغلرې دي دادوه جنتونه داسې دي چې سامانونه يې هم ټول دسپينو زرودي

هغه لوښي چې اوبه او شراب پکې څښل کيږي هغه پلېټونه چې خوراکونه پکې خوړل کيږي داټول دسپينو زر ودي اودادجنت حالات چې بيانيږي په دغه کې بايد مونږ شک ونه کړوځکه چې دادخداوند متعال اوحضرت نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرموده ده.

په جنت کې داسې مقامات شته چې يوه لويه مانۍ دملغلرو وي په هغې کې دننه اويا کورونه وي اوپه يوه کور کې اوياکوټې او په يوه کوټه کې اويا تختونه او په هر تخت باندې به اويا قسمونه فرشونه وي چې د هر يوه رنګ به له بل څخه جُدا وي اوپه هر فرش به ددغه جنتي له پاره بېله بېله حوره ناسته وي. دوه داسې جنتونه دي چې دهغو ټول اسباب د سپينو زرو دي، د څښاک شيان يې شراب دي چې د هغو د اقسامو بيان د قرآن کريم په آيتونو کې شوی دی. شراب به څکل کېږي، د دُنيا د شرابو غوندې کيفيت به يې نه وي، چې د سر درد ورسره پيدا کېږي، يا انسان داسې نشه

کړي چې د عقل له دائرې څخه ووځي، هلته د شیدو ویالې هم شته چې نه به دغه شیدې بدبویه کېږي اونه به پکې کوم تغیر راځي، هلته شات هم شته داسې به صفا وي چې هېڅ گندگي به ورسره گډه نه وي، هلته داسې اوبه شته چې هېڅ تغیر پکې نه راځي، چې هرڅومره ډېر وخت وربانديې تېر شي، ددغو اوبو نمونه په دې دنيا کې د زمزم اوبه دي، چې په کلونو کلونو خلکو ساتلي وي خو هېڅ بدبويي او خرابي پکې نه پیداکېږي. خدای تعالیﷻ په دُنیاکې د هغو اوبو یوه نمونه ښودلې.

بیا دوه داسې جنتونه هم شته چې دهغو ټول اسباب بیا د سرو زرو دي، د دواړو جنتونو آبادي د سرو زرو له خښتو څخه شوې ده، لاندې خمکه او دېوالونه يې هم د سرو زرو دي، خته يې له مُشکو څخه جوړه ده، چې بې اندازې خوشبويي لري.

هر جنتي انسان ته به د ډوډۍ خوړلو په وخت کې اویا دسترخوانونه واچول شي اوپه هر دسترخوان به اویا قسمه خوراکونه ایښي وي، د یوه میل په اندازه به اوږد او همداسې د بیا میل په اندازه به يې د دسترخوان پلن والی وي، له دې سره سره بیا دغه انسان ته الله ﷻ دومره طاقت هم ورکړی وي چې دا ټول خوراکونه کولی هم شي. یوه جنتي ته الله تعالیﷻ د دنیا د څلوېښتو انسانانو طاقت ورکړی وي، خو هلته چې دا دومره خوراکونه کېږي نو قضاء حاجت نشته، څومره اوبه او شراب ،شیدې او شات چې څکل کېږي نو هلته بیا بولې (متیازې) نشته

، يواځې او يواځې د ارګمي (تېغ) په رااېستلو او په خولې کېدلو سره هرڅه هاضمه کېږي.

حضرت نبي کريمﷺ فرمايي چې بيا په جنت کې دننه رتبې هم ډېرفرق لري. داسې مرتبې شته چې د لاندې مرتبې خلک به د پورته مرتبو خلکو ته داسې ګوري لکه چې څوک له ځمکې څخه د آسمان ستوري ته ګوري.

حضرت ابی سعيد خدریؓ له حضرت نبي کريمﷺ څخه پوښتنه وکړه چې: دغه دومره اوچته مرتبه چې دا نور جنتيان به داسې ورته ګوري لکه څوک چې له ځمکې څخه آسمان ته ګوري نو الله تعالیﷻ به دا مرتبې چاته ورکوي ؟ نو حضرت نبي کريمﷺ ورته په ځواب کې وفرمايل چې: دا دهغو خلکو ځای دی چې د فرضي حقوقو له ادا کولو سره سره له ګناهونو هم ځان ساتي او بل دا عمل هم کوي چې: ﴿ لِمَنْ يَفْشَى السَلاَمَ وَ يُطْعِمُ الطَعَامَ وَ يُصَلُّوْنَ بِالْلَيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامُ وَ يَدُوْمُ عَلَى الصَوْمِ ﴾ يعنې الله تعالیﷻ دا جنت او مرتبه هغو خلکو ته ورکوي چې سلام عام کوي او هرچاته ډوډۍ ورکوي اود شپې له خوا په داسې حالت کې د (تهجد) لمونځ کوي چې خلک ويده وي او په دوامداره توګه روژه نيسي.

نو کله چې حضرت نبي کريمﷺ دا خبره وکړه نو ابوسعيد خدریؓ بيا ورڅخه پوښتنه وکړه چې: يارسول اللهﷺ ! دا به د چا په وس او طاقت کې وي چې په دنيا کې سړی ويني او دی سلام وربانديې اچوي ، له ظاهري الفاظو خو دا معلومېږي چې د دنيا په ټولو

انسانانو به سلام اچوي ، ټولو خلکو ته به ډوډۍ ورکوي ، ټول عمر به روژه نیسي او ټوله شپه به لمونځ کوي . نو دا خو دهیچا په وس کې نشته. نو حضرت رسول اللهﷺ ورته په خوب کې وویل چې آسانه طریقه یې داده چې څوک په مخه درځي نو هغه ته به سلام اچوي، داسې نه چې په خلکو پسې به ګرځي. د (اطعام الطعام) دا معنی چې که بل څوک درته پیدا نه شو چې ډوډۍ پرې وخوري نو په خپل اهل او عیال یې چې د ثواب په نیت وخوري دا هم په (اطعام الطعام ) کې داخل ده.ځکه په بل ځای کې حضرت نبي کریمﷺ فرمایي چې بهترینه صدقه اول په خپل عیال ده.

## اول صدقه په خپل عیال ده

حضرت نبي کریمﷺ ته یو څوک راغی او ورته یې وویل چې: له ماسره یو دینار دی ، حضرت نبي کریمﷺ ورته وویل چې په خپل ځان یې مصرف کړه، هغه بیا ورته وویل چې: بل هم راسره شته، حضرت نبي کریمﷺ ورته وویل چې: په خپل اولاد یې مصرف کړه، هغه بیا وویل چې: بل هم راسره شته، ده مبارکﷺ ورته وویل چې: په خپله ښځه دې مصرف کړه، هغه بیا وویل چې: بل هم راسره دی، نو حضرت نبي کریمﷺ ورته وویل چې: اوس نو تاته ښه معلومه ده چې په خپلو خپلوانو کې دې څوک ډېر حقدار ده نو دا بیا هغه ته ورکړه. نو بهترینه صدقه په خپل عیال ده.

نو راځم اصلِ مطلب ته کوم چې مخکې حدیث شریف تېر شو چې په خپل عیال باندې که په ښه نیت مصرف وکړې بیا به هم هماغه مرتبه الله تعالیٰﷻ درکوي کومې مرتبې ته به چې نور جنتیان له لاندې ګوري. اود دوامدارې روژې مطلب داده چې له فرض روژې څخه وروسته په هره میاشت کې درې درې نفلي روژې ونیسې نو دا داسې ده لکه ټول کال چې دې روژه نیولې وي.

اود شپې د لمانځه څخه مطلب داچې یو څوک د ماخستن فرض لمونځ په جَمعه اداکړي او بیا فضول مجلسونه او عبثیات پرېږدي ، بې ځایه قصې او نقلونه ونه کړي او بیا د سهار لمونځ په جَمعه وکړي نو ْدغه سړي ته هم الله تعالیٰﷻ هم هغه مقام ورکوي کوم مقام چې الله تعالیٰﷻ د تهجدو لمونځ کوونکي ته ورکوي.

نو که مونږ او تاسې د الله تعالیٰﷻ رحمت ته پام وکړو نو خبره ډېره زیاته آسانه ده، چې د جنت هغه بنګلې چې نور د ټیټې مرتبې جنتیان ورته له لاندې څخه ګوري خدای پاکﷻ یې هغو خلکو ته ورکوي څوک چې په لاره چاته په مخ ورځي او په سلام اچولو کې مخکې شي.

حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: ﴿البادئ بالسلام بری من الکبر﴾یعنې څوک چې په سلام اچولو کې تر بل مخکې شي نودا سړی له تکبر څخه خالي دی.

یاداچې په خپلې کورنۍ باندې حلال رزق خورې اود ثواب نیت دې وي نودا سړی به هم هغه مقام ته رسیږي چې مخکې بیان شو.

او بيا په هره مياشت کې درې نفلي روژې ونيسي
ياداچې فرضي روژې ونيسي نو الله تعالی ﷻ ورته د ټول عمر د روژې نيولو ثواب
ورکوي. د ماخستن او سهار لمونځونه چې په جَمعه ادا کړي نو که
د شپې بالکل جګ نه شي بيابه هم الله تعالی ﷻ دغه مقام ورکوي.

اوس چې سړی د جنت بنګلو او انعاماتو ته متوجه شي، هغه د
جنت حورې چې اويا جوړه جامې يې اغوستې وي، له دې جامو سره
سره دومره ښائست الله تعالی ﷻ ورکړی چې د دوی د پښې د
هډوکي په منځ کې ماغزه يې معلوميږي، نودا ښائسته حورې او
غلمان، ښائسته بنګلې دا د يوه ادنی جنتي مقام دی اودا مقام په
عبادت سره ترلاسه کيږي، نو عبادت يې قيمت شو، قيمت خو يې
څوک نه شي ادا کولای ، جنت ته چې څوک داخليږي د الله تعالی ﷻ
په رحمت به داخليږي، خودا عبادت يې د رحمت سبب دی.

کوم اولاد چې د مور او پلار خدمت کوي، نو په هغه اولاد يې تر
نورو اولادونو شفقت او مينه زياته وي، نو خداوند متعال ﷻ د هغه
چاچې دده ﷻ بندګي ډېره کوي، عاجزي ورته کوي، نو په هغه بندا
يې رحمت هم زيات وي او ترڅو پورې چې انسان باغي شوی نه وي
خدای پاک ﷻ کله هم چاته عذاب نه ورکوي.

# په مخلوق باندې دخدای پاک ﷻ رحم اومهرباني

په حدیث شریف کې راغلي دي چې یووخت حضرت نبي کریم ﷺ
صحابه کرام ﷺ ورسره دي چې یوې ښځې ته وروګرځېده چې هغې
اور بل کړی اوکټو یې وریاندې ایښې نوداداور لمبه چې جګه شي
داخپل بچي ورځخه لرې کړي اوکله چې تیته شي بچي یې ورشي په
هغه طرف باندې داښځه ورته راجګه شوه چې ته رسول دخدای یې
حضرت نبي کریم ﷺ ورته وویل هو زه یم وایي: الله تعالی ﷻ په
مخلوق باندې تر مور اوپلار زیات مهربانه ده چې مور خوخپل زوی
اورته نه اچوي اوس دازما بچی ده زه یې اورته نه اچوم خدای
تعالی ﷻ چې پر خپل مخلوق تر مور اوپلاریلکې اویاواري زیات
مهربانه ده نو هغه څرنګه دغه مخلوق اورته اچوي حضرت نبي
کریم ﷺ سرټیټ واچاوه اوپه ژړا شواووېې ویل چې الله تعالی ﷻ
خپل بنده ته عذاب نه ورکوي خوچې څوک طغیان اوسرکشي
شروع کړي دبندګي نه ووزي بیا خدای پاک ﷻ هغه ته عذاب
ورکوي لکه یو اولاد ده دخپل مور اوپلار بې عزتي یې شروع کړه
دامور اوپلار چې ډېر شفقت وریاندې لري خوکه څوک خپله
مواوپلار ازاروي دغه مور اوپلار به دغه خپل زوی ته سزا ورکوي
چې وس یې رسیږي.

نو انسان هم چې دالله تعالی په بندګي کې چليږي خدای پاک ﷻ خپل بنده ته عذاب نه ورکوي تر څو چې له بندګي نه نه وي وتلی خو چې له بندګي نه ووت طغيان اوسرکشي يې شروع کړه باغي شو بيا پس له هغه نه بيا هغه ته سزا ورکوي.

چې عبادت وي داعبادت سبب درحمت ګرځي خدمت ده دخدای پاک ﷻ بندګي ده.

څومره چې بندګي زياتيږي خدای ﷻ ته اطاعت زياتيږي دغومره دخداوند متعال ﷻ رحمت زياتيږي بيا دخدای پاک ﷻ په خزانوکي دهيڅ شي کمبوت نشته بياواجب تعالی دجنت قېمت نه غواړي بيا دجنت دبنګلو قېمت نه غواړي دخپل ديدارقېمت نه غواړي خکه قېمت يې نشته او نه يې څوک پوره کولای شي دايې هسې سبب يوذريعه اوبهانه ده عبادت کوي که يې نه کوي په اطاعت اوطغيان باندې دخدای پاک خدائي ته څه ضرر نه رسيږي.

نو هر څه چې سړی کوي بايد فائدې ته يې نظر وشي چې لمونځ کوم په لمانځه باندې خدای پاک ﷻ ماته جنت راکوي زه روژه نيسم خدای پاک ﷻ ماته جنت پرې راکوي زه ذکر کوم ماته خدای پاک ﷻ پرې جنت راکوم زه حج کوم ماته خدای پاک ﷻ جنت پرې راکوي زه جهاد کوم خدای پاک ﷻ ماته پرې جنت راکوي او طالبي کوم خدای پاک ﷻ ماته پرې حنت راکوي.

نوهغه جنت ته چې نظروکړي دجنت انعاماتوته نظروکړي بیاکه په دغو عباداتو کې څه تکلیفونه ورباندې تېرهدل داهم ټول ورته اسانه شي.

وایي چې ددنیا دګټې اوتاوان خبره سړی چې په دنیاکې سنجوي نوچې څومره ګټه دیوه شي زیاته وه نودغومره خلک دهغه شي سره محنت تېروي دېرې سترې تېروي تاسې دادمستریانو ژوند ګورئ دسرڅخه ان تر نوکه پورې په ګرسو او مبلاینو ککړوي خوددنیا ګټه ویني چې ډېره ده نوداخپل ښایسته بدن یې ککړکړی وي څکه ددنیا ګټې ته ګوري داتکلیفونه تېروي نوخلک په قسم قسم تکالیفو باندې لګیادي حتی بنګیان دي ددنیادګټې لپاره ټول ژوند په بنګي توب کې تېروي په تېتیوکې یې تېروي په هغه مردارو ځایوکې یې تېروي څکه ګټه یې ویني چې ددنیا دګټې لپاره هغه مردار تکلیفونه څوک تېروي زخیره دمرداري په لاس خالي کوي څکه ددنیاګټه یې ویني.

نوچې ددغوسلوروپیوګټې لپاره سړی ددنیادومره تکلیفونه تېروي دجنت انعامات اودخدای پاکﷻ دیدار اودواجب تعالی رضا﴿ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ ﴾ لږ رضا دخدای پاک دټولې دنیا دانعماتونه بهتره ده بلکې دټولو جنتو له نعمتو نه بهتره دي.

نو بیا به ولې سړی تکلیف نه تېروي بیا به په طالبي جهاد حج لمو نځ روژه په هر عبادت کې تکلیف تېروي څکه چې ثمره یې ډېره غټه ده بڼ له یې ډېره غټه ده په دنیا کې چې ددنیا دګټې خبرې

خلک واوري چې په جر مني کې داسې ګټې دي نو مرګ ته خان ورکوي په داسې او ګوټو کې دکا چاک په لار ځي چې دمرګ خطر يې وي خو ليکن خان رسوي ځکه چې دهغه ځاى روپۍ جګه ده حتى خلک دايمان څخه ورته تېرېږي بې دينه کېږي دهغه ملک قبولي په دې نا مه باندې کوي چې زه العياذ بالله کمونست يا انګرېزى يم دهغه ځاى نه را تښتېدلى يم ځکه ددنيا ګټې ته ګوري نو داخرت ګټه هم دغسې په دغه تکليف پيدا کېږي

تاريخ چې سړى وګوري څومره چې خداى پاک ته ورنږدې خلک دي هغو خلکو تکليفونه ډېر تېرکړي ځکه دهغو خلکو دجنت دانعاماتويدلې جګې دي داتصور چې دچاوي چې هغه مقام به خداى پاک ورکوي بيا به ولې تکليفونه نه تېروي حضرت نبي کريمﷺ فر مايي :چې دجنت درې دروازې دي هره دروازه دهر عبادت مشقت اوتکليف لپاره ده دلمانځه ځانته دروازه ده اودروژې ځانته دريان په نامه دروازه ده دجهاد ځانته دروازه ده يعنې کوم نېک عمل چې چازيات کړى وي دهغه نېک عمل په خاصه دروازه به جنت ته ننوزي.

حضرت ابوبکرصديقؓ فرمايي چې: که په هره دروازه څوک داخل شي نو کوم ضرر نشته، ځکه چې اصل مقصود حاصل دى چې هغه داخلېدل دي، حضرت ابوبکر الصديق ؓ له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کوي چې آيا داسې به هم څوک وي چې د جنت له هرې دروازې څخه ورته آواز کېږي چې راشه او زما له لوري ننوځه نو حضرت نبي کريمﷺ ورته ووېل چې: هو ! ﴿ وَأَرْجُوا أَنْ تَكُونَ ﴾ زما

امید ده چې همدا ته به هغه شخص یې چې د جنت له ټولو دروازو څخه به تاته ناري وهل کېږي چې زما له لوري ننوځه ! د حشر په ورځ چې کله فیصله سره وشي نو هلته به بیا د جنت له هرې دروازې څخه آواز کېږي چې : مصدقینو ( یعنې چاچې صدقه کړې وي ) په دې لار راشئ، چاچې لمونځ کړی وي په دې لار راشئ ، چاچې جهاد کړی وي په دې لار راشئ ! خو یواځې ته به یې چې تاته به له ټولو لارو څخه آوازونه کېږي .

## حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د ټولو نیکو اعمالو مجموعه وه

حضرت صدیق اکبر ﷺ ته به څکه له هر لوري آوازونه کېږي چې هغه به تکلیفونه هم ډېر تېرول، حضرت نبي کریم ﷺ یوه ورځ له صحابهٔ کرامو ﷺ پوښتنه وکړه چې: په تاسې کې داسې څوک شته چې نن یې روژه وي ؟ حضرت صدیق اکبر ﷺ ورته وایي چې: هو ! ما روژه نیولې ده . حضرت نبي کریم ﷺ بیا پوښتنه وکړه چې آیا داسې څوک هم شته چې د مریض پوښتنه یې کړې وي؟ صدیق اکبر ﷺ ورته وویل چې هو ! ما د یوه مریض پوښتنه کړې ده. حضرت نبي کریم ﷺ ورته بیا وویل چې: داسې څوک شته چې نن یې د جنازې لمونځ کړی وي ؟ حضرت صدیق اکبر ﷺ ورته وویل چې: هو ! زه یم . حضرت پیغمبر ﷺ بیا وویل چې: داسې څوک شته چې نن یې له کوم

مسکین سره مرسته کړې وي ؟ حضرت صدیق اکبر ﷺ ورته وویل
چې: هو ما له مسکین سره مرسته کړې ده .

## دحضرت امیرالمؤمنین لخوا دیو مریض پوښتنه او خدمت کول

حضرت ابوبکر الصدیق ﷺ به په هر عبادت کې کوشش کاوه
دحضرت عمر فاروق ﷺ چې دور خلافت راغی نو دصدیق اکبر ﷺ
کورته ورغی او دکور دخلکو نه یې پوښتنه وکړه چې صدیق اکبر
ﷺ څه عملونه کول دخلکو سره یې څه کول نو بي بي یې ورته
وویل چې په فلانکي ځای کې یوعابدده هغه ته به یې روزانه
خوراک ورکاوه حضرت عمر ﷺ چې ورغی یو سړی له سرنه تر پښو
خوړین ده او په هغه ځای کې ناست ده نو ده مبارک ښه ډوډۍ پسته
کړه هغه ته به یې په خوله کې ورکړه چې وربې کړه هغه چیغه کړه
چې آه صدیق اکبر وفات ده ده ورته وویل چې څه پوه شوې ولې
وایې صدیق اکبربه چې ماته ډوډۍ راکوله یووار به یې په خپله
خوله کې وژووله پسته به یې کړه بیابه یې په خپله زیه زماپه خوله
کې راکوله خوړین مریض چې خلک څومره کرکه ور خیني کوي
خوهغه مبارک به یووار په خپله خوله کې پسته کړه بیابه یې ه
شونډو شونډې ورکېښودې څکه دهغه به برداشت نه ؤحضرت
عمر ﷺ دصدیق اکبر ﷺ په ژوند کې یو سړی ولید چې په یوځای کې
دی ډیرعاجزاوفقیرده شل اوشوټ ناست ده هر وخت به چې ورغی

کورته دده کور به جارو اوصفاؤنو بله ورځ یې پوښتنه وکړه چې دادستا خدمت څوک کوي ده ورته وویل چې یو سړی ده راشي خدمت کوي بله ورځ ده قصد وکړ چې زه به وختي ورځم سهار وختي ورغی گوري چې بیا دهغه خدمت شوی دی بله ورځ ترهغه وختي بله ورځ یې دشپې پېره کوله چې صدیق اکبر ﷺ هلته ورروان ده امیر المؤمنین دټولې دنیا دمسلمانانو امیرده خو دیوعاجز کورته چې دهغه بندوبست نشته دهغه دخدمت لپاره ورځي څکه مقام یې جګ ؤ.

## دخدای پاک ﷻ لخوا دحضرت ابوبکر صدیق ﷺ دمرض پوښتنه کول

یووخت کې حضرت جبرائیل ﷺ حضرت نبي کریم ﷺ ته راغی اوویې ویل چې خداوند متعال وایي چې حضرت صدیق اکبر ﷺ ته زما سلام وایه اوبیا پوښتنه ترې نه وکړه چې له مرض سره څرنګه یې دمرض دې څه حال ده حضرت نبي کریم ﷺ حضرت ابوبکر صد یق ﷺ ته وایي:چې خداوندمتعال تاته سلام رالیږلی اودتا دمرض پوښتنه کوي چې دمرض دې څه حال ده دی ورته وایي: چې ښه یم الحمدالله حضرت نبي کریم ﷺ پوښتنه ورنه کوي چې دتاڅه مرض ده ؟حضرت ابوبکرصدیق ﷺ ورته وایي: چې غابښ مې خوږیږي. حضرت نبي کریم ﷺ ورته وایي څومره وخت کیږي وایي دوه کاله

کيږي په دوه کاله کې يې حضرت نبي کريمﷺ ته هم اظهار نه ؤ کړی. دادومره تکليفونه يې ولې تېرول ؟ ﴿ مَنْ طَلَبَ العلى سحر الليالى ﴾ چې غټې رتبې غواړي هغه غټ تکليفو نه تېروي. خدای پاک ﷻ فرمايي : ﴿ أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى ٱلْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ۝ ﴾

ددغه آيت په تفسير کې مفسرين ليکي:

در خار خوری قانع دبار بری صابر      اين وصف اگر جوی در اهل مناهين

داوښ په مدحه کې ددغه ايات تشريح راغلي يعني دازغيو په خوراک باندې قانع ده اويه درانه بار وړلو باندې صابرده. غټ غټ بارونه وړي دغه صفت که ګوري په اولياووکرامو کې به يې پيداکړي. خوراک به يې وچه ډوډۍ وي دتکليف زندګي ،په عبادت کې محنت به دومره ډېر تېروي لکه اوښ چې دروندبارروړي. شپه به تولـه په عبادت تېروي ورځ به تولـه په روژه تېروي دخدای پاک په خدمت کې به همېش همېش لګياوي نوبيا څکه خدای پاک لوړمقامات ورکوي څومره چې دچا ډېر رغبت زياتيږي جنت ته دغومره تکليف په عباداتو کې ډېر تېروي څومره چې له جهنم نه ډېر داريږي دغومره له ګناوونه خان ډېر ساتي دجهنم دعذابوچې سړی تصور وکړي دجهنم سکروټې چې باديږي لکه غټې غټې بنګلې يوه طرف اوبل طرف ته لوېږي لرمان يې دومره غټ غټ دي لکه اوښان دغه عذابونه چې څوک په غور سره وګوري نوبيا دګناه طرف ته اقدام نه کوي دګناه نه خا ن راساتي

نو دانسان دکنترولولو لپاره دغه دواړه خبرې ضروري دي که خدای
نخاسته ګناه مې وکړه بیابه مې داسزا وي چې دجهنم عذابونه به
وي اوهم به دجنت تصور کوي که نیکي مې وکړه بیا ددغه بدله
جنت خدای ﷻ ورکوي نوبیا خدای پاک دغه انسان لوړ مقام ته
رسوي.

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمين

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیند وسندنا وشفیعنا ومولانا
محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین





# (۲۰) مجلس

## له ډېرو تقريرو څخه مطلب، عمل کول دي

دلته ډېر بيانونه، ډېر تقريرونه اووعظ اونصيحت شوی يا اوريدل شوی له دې ټولونه اصلي مطلب دادی چې سړی په دا هر وعظ اونصيحت کې موږ دافيصله له ځان سره کړی وای چې دې وعظ کې مې په دې يوه خبره عمل کوم ؛نوپه راتلونکې کې هم دې انسان ته خدای پاک ﷻ دنيک عمل توفيق ورپه برخه کوي.
حضرت ابوبکر صديق ؓ فرمايي چې دحضرت نبي کريم ﷺ په حضوراوپه هغه مبارک مجلس کې ماته درې شيان ډېر محبوب دي: اول دحضرت نبي کريم ﷺ مخ مبارک ته کتل. دوهم په حضرت رسول الله ﷺ باندې خپل مال مصرفول. دريم داچې خپله لور مې دهغه په نکاح کې ورکول.

اوس نو موږ دحضرت ابوبکر صديق ؓ دغې يوې خبرې ته متوجې شو چې دده دټولو خبرو خلص دادی چې ځان، مال او اولاد درې واړه په حضرت نبي کريم ﷺ باندې قربانول دي.

دا درې سره په حضرت نبي کريم ﷺ باندې قربانول د کامل ايمان نښه دی. حضرت نبي کريم ﷺ فرمايي چې ترهغه پورې

یوڅوک کامل مؤمن نه شي کیدای چې ترڅو پورې ده ته زه ترخپل ځان، ترخپل مال اوترخپل اولاد څخه ګران شوی نه یم.

ددې وجې نه حضرت صدیق اکبر ﷺ په ټول امت کې بهترین شخصیت دی ،اوده د محبت واقعات دومره دي که یې څوک په تفصیل سره بیان کړي نولوی کتاب به ورنه جوړ شي.

که سړی فکر وکړي داوقعي عشق و چې دهغه عشق په برکت باندې خدای پاک ﷻ دومره لوی مقام ورکړی و چې دعرش اواسمان ملایکوته حکم کوي چې ماته په ټوله دنیاکې له هرشي نه دابوبکر ﷺ لباس خوند راکوي نوتاسوهم دحضرت صدیق اکبر غوندې لباس اوجامې جوړې کړئ.

خو دامت په حال باندې افسوس دی چې دعوه یې امتیتوب کووچې مونږ دحضرت رسول الله ﷺ امتیان یو خوله دې ټولوسره سره بیاهم دهغه سنت په خپل ځان نه عملي کوو،خدای نخواسته داسې نه چې په منافقت کې واقع شو اوخدای پاک ﷻ وایي چې له ماسره ترهغه پورې دچا محبت نشي راتلای ترڅو چې دخپل رسول په لارو برابر نه شي ، دهغه سنت ذوی ته له هرشي محبوب نه شي.

مونږ اوتاسې ته یواځې دوعظ اوریدل څه فائده راکوي ترڅوچې په دغه وعظ مو عمل نوي کړی ،مونږ یواځې په دې باندې څۀ کوو چې دخلیفه صاحب ښه مجلس و،ژړاوې وې، دعاګانې وې مونږ ته ژړاوې اودعاګانې څه فائده کوي چې عمل پرې ونه کړو ،مونږداحال څه کوو چې دقیامت په ورځ حضرت نبي کریم ﷺ رانه خفه وي اوشفاعت مونه کوي،اوخدانخواسته خدای

پاک ﷺ ته شکایت وکړي چې : ﴿ يَٰرَبِّ إِنَّ قَوْمِي ٱتَّخَذُوا۟ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ مَهْجُورًا ﴾ ای خدایه ! زما دغه قوم خو قرانکریم ته شاګرځوله ، تلاوت یې نه کولو ، معنی یې نه زده کولو ، عمل نه پرې کول اوله قرانکریم سره یې محبت نه لرلو ، چې داسې شکایتونه راباندې شروع شي هغه ځای بیا دافسوس دی .

له دې ټولو مجلسونو څخه مطلب دادی چې هره ورځ دیوعالم له خولې څخه یوه خبر اورو نوباید له ځان سره داټینګ عزم وکړو چې په دې به عمل کوم، اوځانونه واقعا دحضرت نبي کریم ﷺ امتیان وګرځوو اودا مو یقین وي چې زه دحضرت نبي کریم ﷺ امتي یم اودقیامت په ورځ به دده سره مخامخ کېږم ،اودا فکر را سره وي که خدانخواسته که دقیامت په ورځ دی د موږ له امتیت څخه بیزاره وي نو زه به بیا څه کوم؟ زما دفنا ځای به بیا کوم وي؟ دا به له موږ سره په عمل کولو کې زیاته مرسته وکړي اوددې اثر به هلته پیداکېږي چې داهر یوعمل ته مو پام وي اوعمل ورباندې شروع کړو.

یعني د اودس په صحیح طریقه سره زده کول شروع کړو، دجمعې لمونځ شروع کړو،خپل لباس اوکالي دحضرت نبي کریم ﷺ په طریقه باندې شروع کړو ،مسواک ،پټکی اوداسې نور خومره مو چې له وسه کېږي روزانه یو- یوسنت عملي کوو، کله مو چې کوشش شروع کړ بیا به په دغو وعظو اونصحیتونو کې نور اثر هم پیداکېږي .

حضرت نبي کريم ﷺ فرمايي :﴿ من عمل بما علم ورثه الله علم مالم يعلم ﴾ څوک چې په هغه علم باندې عمل وکړي نو خدای پاک ﷻ به دېته اسرارو علم ده ته نصيب کړي .

په مدرسوکې د کشف خبرې نه زده کېږي ، اولياء کرامو ته چې څومره اسرار معلومېږي ،هغه په کتابونوکې نه زده کېږي .دا يواځې اوېواځې دعمل نتيجه دی چې په دين باندې عمل وشو بيا خدای پاکﷻ دده شرح صدر په نصيب کوي دده سينه صفا کېږي ، بيا الله تعالی ﷻ لدني علم ورنصيب کوي، بيا الله تعالی ﷻ اسرار ورښيي. بيا له دې انسانانو داسې کسان جوړېږي چې دقيامت په ورځ چې خلک په ځانو پورې حيران وي ،دی به دهغو خلکوچې دده خوښېږي ، شفاعت کوي . الله تعالی ﷻ ته به وايې چې دغو خلکو له ماسره کومک کړی ،له ماسره يې محبت کړی و،دما يې خدمت کړی و،داجنت ته داخل کړه ؛نوخدای پاک ﷻبه ددوی شفاعت قبول کړي اوټول به جنت ته بوزي .

دا ټول چې پيداکېږي ،په عمل پيداکېږي . داسې نه چې يوار به سړی مولوي کېږي بيا به عمل کوي،نه ! دايوه مسئله موچې واوريده په هغه موعمل وکړ دغه ته عمل ويل کېږي . په دې عالم شوچې ډېره پرېښودل سنت دی .پرېښودل يې دومره ثواب لري اوخرې يول يې گناه لري نوبايد عمل پرې وشي .

دلمانځه په يوه مسئله چې پوه شو دغه علم دی ،په دې عمل کول پکار دی څکه چې موږ ته يې علم راپه نصيب کړ، خدای پاک ﷻ په دې علم باندې عمل رانه غواړي .

یوه خلیفه صاحب قیصه کوله چې مابه هروخت په یوچا زړه پرېښودله اونصیحت به موورته کاوه. په هغه شپه به ماحضرت نبي کریم ﷺ په خوب ولید، چې د پرزیات به خوشحاله و. رسول الله ﷺ دامت په عمل باندې خوشحالیږي ، هغه په جایداد اودنیا نه خوشحالیږي . ترهرڅه نه په دې خوشحالیږي چې دده په سنتو عمل وشي ،ددین تابع شي ،په نورو شیانو نه خوشحالیږي بلکې په نورو شیانو باندې شیطان خوشحالیږي .

نو له تقریراووعظونو څخه دامطلب دی چې موږ یې دعمل ذریعه وګرځوواودعمل کوشش پرې شروع کړواوکه تقریرونه اونصحیتونه هره ورځ اورو اوعمل نه پرې کووهیڅ فایده یې نه شته بلکې فائده اوخوند هلته وي چې په یوسنت باندې عمل وشي

په بله جُمعه کې به له دې جُمعې نه د پرزیات خوند وي ،ځکه هلته دالله تعالی ﷻ پټ راز اوعشق شروع کېږي ،دالله تعالی ﷻ اورسول الله ﷺ عشق اومحبت شروع کېږي ،څومره چې سړی ددین طرف ته نږدې کېږي عشق اومحبت پیداکېږي ،هلته بیا سړی دمجلس ،وعظ اونصحیت په خوند پوهېږي ،هلته بیا دذکر اوتلاوت په خوند پوهېږي .

وآخر دعوانا ان الحمدلله رب العلمین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا وسندنا وشفیعنا ومولانا محمد وعلی آله واصحابه واتباعه واهل بیته اجمعین

